# کندهار

د ۱۳۹۶ کال ۵مه گڼه

(لیندۍ-مرغومی)

د کندهار اطلاعاتو او فرهنګ ریاست دوې میاشتنۍ خپرونه







د مرحوم محمد ولي زلمي او مرحوم عبدالهادي هاند قبرونه؛ چې اطلاعاتو او فرهنګ ریاست تازه جوړ کړل

# کندهار



علمي، تاريخي، ادبي او ټولنيزه مجله

مؤسس

**محمدولي زلمی**

مسئول مدير

**محمدنبي سلطاني**

کتنپلاوي

**ډاکټر عبدالرازق پالوال**

**استاد محمد معصوم هوتک**

**پوهنمل شېرشاه رشاد**

**استاد حيات الله رفيقي**

**محمد يار يار**

**محمد ابراهيم سپېڅلی**

پته

**علامه حبيبي واټ**

**اطلاعاتو او فرهنگ رياست**

**د کندهار مجلې دفتر**

**ټيليفون: ۰۷۹۳۰۴۰۱۴۰**

ايمېل ادرس: kandaharmagazine@gmail.com

د امتياز څښتن: د کندهار اطلاعات او فرهنگ رياست

**دريمه دوره**
**د ۱۳۹۶ش کال پنځمه گڼه (ليندۍ - مرغومی)**
**پرله پسې ۸۴ يمه گڼه**

**څو ضروري يادوني**

- کندهار مجله اسلامي او ملي گټو ته زيان رسوونکي ليکني نه خپروي.
- کندهار مجله د مجلې د ټاکلي ليکني معيار سره سم د ليکنو په اصلاح کي د لاسوهني حق لري.
- را استول سوي ليکني بيرته نه ورکول کېږي.
- هره ليکنه د ليکوال خپل نظر څرگندوي.

**په هيواد او له هيواده دباندي د مجلې بيې**

هيواد: ۳۰ - افغانۍ

پاکستان: ۱۰۰ - کلداري

**کلنی گډون**

هيواد: ۱۸۰ - افغانۍ

پاکستان: ۶۰۰ - کلداري

نور هيوادونه: ۱۰۰ - امريکايي ډالره

# فهرست

## څیړنه



## شعرونه



## ترجمه



## خاطرې



## راپورونه

د ادارې یادښت:

# فرهنگي ارزښتونه او زموږ مسئولیت

دنړۍ ټول ملتونه یو لړ داسې کلتوري معیارونه او ارزښتونه لري، چې په مټ ئې د ټولنې پرمختګ، جذابیت، ذهنیت، علمیت، سیاست او... ارزیابي کیږي.

افغانه ټولنه هم له هغو ټولنو څخه ده، چې خپل هویت، کلتور، فرهنګ او ویاړلي ارزښتونه لري، چې دنړۍ د ډېرو ملتونو تر فرهنګونو ځکه غوره او ښه دي، چې د انساني ژوند ډېرو سالمو او معقولو غوښتنونوته ځواب وايي.

خو له بده مرغه دغه ارزښتونه دا مهال پر ځای او ثابت نه دي، ځینې ئې په شعوري او ځینې په غیر شعوري ډول پر ستوني پښه ایږدي د ابد لپاره ئې د مرګ کندي سپاري. دا خبره سمه ده چې ځینې دودونه به په ځینو خاصو ځایونو کې ښه نه وي، خو دا دټولنې د پوهې او علم دکچې په لوړولو سره په تدریجي توګه په خپله له منځه ځي او یا سمېږي. دا هم سمه ده، چې دنوي عصر، د نسلونو په بدلون او دټکنالوژۍ په را تګ سره ارزښتونه او کلتوري معیارونه بدلون کوي، خو هغه کلتوري معیارونه او ارزښتونه چې افغان ملت په تلل او پېژندل کیږي؛ لکه: یو له بل سره مرسته او تعاون، مینه او محبت، رحم او عاطفه، غیرت او شهامت، ورورولي او همکاري، حجاب او پرده، د ښځو درنښت او وقار، مشرانو ته درناوی او عزت، پر کوچنیانو شفقت او مهرباني، صبر او زغم، مېلمه پالنه، وطن پالنه او ... باید ثابت پاته او وساتل سي.

په کار داده چې دافغاني ارزښتونو او کلتوري معیارونو په ساتلو کې د هیواد دکلتوري ارزښتونو علمبرداره طبقه (لیکوالان، شاعران، ادیبان، عالمان، دقلم خاوندان او ...) خپل فکرونه او ذهنونه په کار واچوي، قلمونه وخوځوي، افغاني ارزښتونه خلکوته وروپېژني، تاریخي او کلتوري افتخارات ئې مخته کښېږدي، ښېګڼې ئې بیان کړي، ځانګړتیاوې او خوبۍ ئې ښکاره کړي، عام اولس ته ئې د ساتلو او ژغورلو عامه پوهاوی ورکړي، هغه ویاړونه ئې څرګند کړي، چې د انسانیت لالهانده قافله ئې تر منزله رسولې ده. همداسې د پردیو تېل سوو افراطي او زهرجنو فرهنګونو مخه ونیسي، چې ځینو بې سره او بې ښکره رسنیو (تلویزونو، راډیوګانو، فلم، ډرامو، ژباړو او ...) له خوا په اګاهانه او نا اګاهانه ډول راوړل کیږي او تبلیغیږي، چې داسې کارونه د یوې ټولنې لپاره زهر او نه جبرانېدونکي دي.

خلیل الله سروري

# مولانا ابوالوفاء افغاني

**یادونه:** د مولانا ابوالوفاء افغاني دغه پېژندنه د خلیل الله سروري د لیسانس د دورې له مونوګراف څخه، چې د مولانا صاحب په اړه ئې لیکلی دئ را اخستل سوې ده. د مولانا صاحب پېژندنه ځکه دلته لنډه خپروو، چې د مجلې د لیکونو په برخه کې د مولانا صاحب ځیني لیکونه خپرېږي چې زموږ مشرانو لیکوالو ته ئې لیکلي دي، نو دا مو ښه وګڼل د مجلې هغه لوستونکي چې مولانا صاحب نه پېژني، ور وپېژنو. (اداره)

مولانا ابوالوفاء افغاني چې اصلي نوم ئې محمود شاه دئ، د مولوي مبارک شاه زوی او په ځېه بارکزی پښتون دئ. د (۱۳۱۰هـ .ق.) د لوی اختر د میاشتې پر لسمه نېټه، چې د (۱۲۷۲ل.) او (۱۸۹۳م.) کال سره سمون لري، د کندهار ولایت په ارغسان کې زېږېدلی دئ.

مولانا ابوالوفاء لومړنۍ مروجې زده کړې پر خپل پلار او د خپلې سیمې پر نورو استادانو باندې وکړې، د پلار تر وفات وروسته مولانا په نورو زده کړو پسې د پکتیا ولایت د ګوملې اولسوالۍ له لارې، د خروټو پووندهو سره، د پښتونخوا د دامان سیمو ته ولاړ. څه زده کړې ئې هورې د ډېره جاتو، کوهاټ او پېښور د پوهانو څخه وکړې. بیا د هندوستان ګجرات ته ولاړئ، د هغه ځای د علماو څخه ئې زده کړې وکړې. د هغه ځایه رامپور ته ولاړئ او د رامپور په عالیه مدرسه کې شامل سو او په (۱۳۳۰هـ .ق.) کې حیدرآباد دکن ته ولاړئ او هلته ئې په مدرسه نظامیه کې خپلو زده کړو ته ادامه ورکړه . د معقولو او منقولو علومو زده کړې ئې پر مولانا شیخ الاسلام مولانا انوار الله شاه فاروقي . علامه مفتي عبدالکریم الافغاني، مولانا محمد یعقوب، مولانا عبدالصمد او مولانا مفتي رکن الدین باندې وکړې.

دا افغان نومیالی پوه، چې په ابوالوفا سره ئې شهرت موند، په ځانګړو عربي علومو کې، لکه : فقه، اُصول، تفاسیر، احادیث، صرف، نحو، معقول ، پخوانۍ فلسفه، ریاضي، ادبیاتو او نورو رواجي علومو کې د ډېر مهارت څښتن سو. پرته له پښتو ئې عربي، پارسي او هندي ژبې هم زده وې . داسې ډېر پښتانه سته، چې نوموړی به نه پېژني، لېکن د مصر، هند، استانبول، شام مطبوعاتو او ځینو عالمانو ډېر ښه پېژاندی.

مولانا ابوالوفاء د زده کړو تر بشپړولو وروسته په دکن کې پاته سو او په جامعه نظامیه کې د تدریس وظیفه ور دغاړې وه او د دې پر څنګ ئې په (۱۳۴۸ هـ .ق.) کال په حیدر آباد کې د(مجلس احیاء المعارف النعمانیه) په نامه د یوې ادارې تاداو کښېښود او تر مرګه پورې د دې مجلس روح روان وو . د دې مجلس هدف دا وو، چې د پخوانیو فقهانو کتابونه په تېره بیا د حنفي مجتهدینو غیري مطبوع تصنیفونه له ضایع

کېدلو وساتي. نو د دغو کتابو خطي نسخې به ئې د دنیا د کتابخانو، موزیمو او نورو ادارو خصوصاً د مصر او استانبول څخه راغونډتلې او تر تصحیح، تعلیق او تحشیې وروسته به ئې چاپولې. په خپله مولانا صاحب مرحوم د دې ادارې د جوړېدو او هدف په اړه داسې لیکي:

"....زما همېشه دا خیال وو، چې د امام محمد رحمة الله علیه، د کتابو کاش تلاش وسي. شاید په یو ځای کښې ئې نسخې پیدا سي او د اشاعت کوشش ئې وسي. چه له تلفه محفوظ سي. د دې جلیل القدر امام شپږ کتابه. چه په ظاهر الروایت مشهور دي، له هغو څخه جامع صغیر اوله پلا په ډېره پخوا زمانه کې په استانبول کې. بیا په مصر و هندوستان کې نشر سوي وه. پس د دې لیکونکې په کوشش د سیر کبیر شرح د امام سرخسي په دائرة المعارف کې د حیدر آباد نشر سوه، چې تر اوسه علما ځنې فائدې اخلي. لیکن دا کار خورا ګران وو. له دې جهته بل هم خیال نسو پیدا کولای، لیکن نا اُمیده نه وم. د دې اهمیت به مې په دوستانو کې همېشه بیاناوه. آخر د رب ﷻ مهرباني وه، بعضي احباب را سره متفق سوه او ۳۰ ربیع الثاني سنه ۱۳۴۸ هـ.ق. پس د جمعه د لمانځه څخه، د مدرسه نظامیه په شرقي کنج کې، موږ اتو کسانو د دې مدرسې له فارغانو څخه، د یوې ادارې په تاسیس اتفاق وکیئ او دا اداره په احیاء المعارف النعمانیه موسومه سوه. اغراض به ئې دا وي، چې د حضرت امام اعظم رضي الله عنه او د هغه د شاګردانو او د شاګردانو، د شاګردانو او د پخوانو فقهاؤ د مذهب حنفي او لویو. لویو فقهاؤ تصانیف باید تلاش سي او نُسخ ئې حاصلي کړای سي او پس له صحته نشر سي. چې له ضیاعه محفوظ سي او هغه کتابونه. د دې مذهب د امامانو چې نشر سوي وو. لیکن صحیح نه وو چاپ سوي یا ورک وو. سره د هغو دوباره د چاپ په صحت سره سبیل وسي او د دې دپاره باید چې اعانه شروع سي، نو اعانه مو شروع کړه او د دې ترغیب دپاره مو یوه رساله پنامه (۱) د دعوة الاخوان الاحیاء معارف النعمان اوله پلا نشر کړه، چې په ترغیت او د مجلس په قاعدو او لائحة العمل مشتمله وه. بیا مو د (۲) امام اعظم رضي الله کتاب العالم و المتعلم نشر کئ. پسې(۳) د امام خصاف، د کتاب النفقات شرح دامام صدر الشهید نشر کړه پسې (۴) مجلس د امام ابو یوسف رحمة الله علیه کتاب الاثار (چې په هغو احادیثو مشتمل دئ، چې امام ابویوسف ئې له امام اعظم څخه روایت کړي دي) نشر کئ. پسې(۵) د امام ابو یوسف کتاب الرد علی سیر الاوزاعی. پسې(٦) د دوی کتاب اختلاف ابی حنیفة و ابن ابی لیلی پسې(۷) د امام محمد رحمه جامع کبیر نشر کئ. پسې(۸) د امام ابو عبدالله ذهبي دامام صاحب او د صاحبینو مناقب پسې(۹) د امام طحاوی مختصر، پسې(۱۰) اُصول سرخسي، چې د دې دوو کتابو ذکر ستاسي په مجله کې راغلی دئ.

اوس د کتاب الحجج. د امام محمد په تیاري بوخت یو او په دې مابین کې مو چې د نوادرو تلاش کاوه، د دې نادرو کتابو نقلونه او عکسونه مو په ډېر زیار سره حاصل کړي دي ....".

همدا رنګه به مولانا صاحب په خو کالو کې یو وار خپل وطن ته هم راتلئ او دلته به طالبان پر هستېدل او د دوی د علمي فیض څخه به ئې استفاده کول او ځني فیضیابه کېدل به. په افغانستان، پښتونخوا، هند کې د ډېرو ملایانو او طالبانو استاذ وو، چې د دغو سیمو طالب العلمانو ته ئې د پوهې پګړۍ ورتړلي دي.

مولانا صاحب د خپلواکۍ د بیا ګټلو په دوهم کال. د څه وخت تېریدو له پاره کندهار ته راغئ او د مرحوم مولوي عبدالواسع اخندزاده په ځای کې اوسېدئ. دا وخت هم د اتیا تنو طالبانو په شا و

خوا کې ده ته د زده کړې مراجعه وکړه. د تجوید او قرائت زده کړې ئې کولې.

۱۵ کاله وروسته بیا خپل پلرني هیواد ته راغئ، دا پلا بیا د دې ځای ډېرو شاګردانو زده کړه څنې وکړه او بیرته دکن ته ولاړ. شپاړس کاله وروسته بیا هم کندهار ته راغئ او ډېر ملایان او پوهان ئې له مجلسه مستفید سوه، څکه چې نوموړی په علم کې (علامه) وو او د معلوماتو ساحه ئې ډېره پراخه وه، د هر علم ګټه څنې کېدلای سوای.

آخره پلا خپل هیواد ته د (۱۳۴۹ل.) کال په وړي کې راغئ، چې ډېر سپین ږیری سوی وو، حتی پر ملا څه قدر کړوپ سوی وو او دا ئې خپله وطن ته وروستی سفر وو.

د وطن سره دمیني په اړه د دوی په اړه د علامه حبیبي ته په یو لیک کې داسي لیکي:

"...ما ددکن د آب و هوا سره عادت کړی دئ، مګر که په درو څلورو کالو کې یو وار د قندهار او خپل وطن هوا تنفس نه کم مریض کېږم...".

مولانا صاحب په (۱۳۰۵ ل.) کال دکن ته ولاړ او د ژوند تر پایه پوري هلته په افغاني پاسپورټ و اوسېد، تر څو چې د (۱۳۹۵ هـ.ق.) کال د رجب پر ۱۳ مه د چارشنبې په ورځ، چې د(۲۳ جولای ۱۹۷۵م.) سره سمون لري، په حیدرآباد دکن کې د (۸۵) کالو په عمر ومړ او هلته خاورو ته وسپارل سو.

د مولانا صاحب د مرګ تاریخي مادې:

قبلـــه دیـــن و کعبـــه ایمـــان
ناصـــر دیـــن و مـــذهب نعمـــان

وارث علـــــم مصـــــطفوي
رکـــن دیـــن، و شـــیخ زمـــان

چشـــمه فـــیض و عـــارف کامـــل
طلـــع نـــور دیـــن و معـــدن عرفـــان

یعنـــي شـــیخ مـــا ابوالوفـــاء
واقـــف علـــم، و حـــافظ قـــرآن

در رزو ســـیزده مـــاه رجـــب
گشـــت از چشـــم مـــا همـــه پنهـــان

هـــاتف گفتـــه ســـال وصـــلش
فخـــر ملـــک فـــرد عـــالم

۱۳۹۵

فخـر دیـن و فخـر ملبت بـو الوفـاء
آنکـه ذاتـش منبـع فیضـان بـود

واصـل حـق شـد بـدین مصـطفی
بحـر عرفـان ثـاني نعمـان بـود

۱۳۹۵

د مولانا آثار:

پر لاندې درېیو مستقلو آثار سربېره مولانا صاحب د سلو په شا و خوا کې پر کتابو باندې حاشیې او تعلیقات لري، چې ډېر ئې د(احیاء المعارف النعمانیه) له خوا خپاره سوي او چاپ سوي دي.

1. دلیل قرآن:

دلیل قرآن د تجوید یوه کوچنۍ رساله ده، چې په (۱۳۳۹هـ.ق = ۱۳۰۰ل.) کال ئې مولانا په کندهار کې له لیکلو څخه فارغ سوی دئ. رساله (۳۲) مخه ده، فهرست نه لري. تر یو نیم مخیزي سریزې وروسته متن شروع کېږي،(۱۹) بابه لري، چې په هغه کې مولانا صاحب د حروفو پر مخروجونو، د حروفو پر صفاتو، تفخیم و

ترقیق، مد، میمم ساکن و نون ساکن و تنوین، ادغام، های کنایه، های سکته، میم جمع، اماله، تسهیل، دفرش حروف، طریقو د وقف، ابتداء د وصل، سکته، اعوذبالله، بسم الله او تکبیر باندې خورا په روانه ژبه ږغېدلی دئ. کتاب مولانا صاحب د هغه وخت په مروج لیکدود لیکلی دئ، دلته ئې سریزه را اخلو:

" د صفتونو سزا وار هغه ذات دئ، چه مزکي ورته پسجده سر لګولی دئ او آسمان ورته په رکوع او درختي پقیام ورته ولاړي او غرونَ پقعده ورته ناست دي، بني آدم ی د عشق پجوش و خروش کښې سرګرم دئ او د رحمت د نزول لایق هغه ذات دئ. چه د تمام انسان د محبت د زیاتولو دپاره رالېږل سوئ دئ او د رب کتابې وه ادنی' موتې خاورِه ته راوړی دئ، چه ی ولولي او ایمان پر راوړي. پسې د رحمت وړ د ده اصحاب و اولاد و ازواج دي، چه موږ ته ی دا قرآن په صحیح الفاظو سره را رسولی دئ. زه د رب ﷻ و رحم ته محتاج ابوالوفاء، دمولوي مبارک شاه اخند زاده. جنت دې ځای سي، و درستو پښتنو ته خصوصاً د قندهار خلقو ته عرض کوم، چه دا یوه رساله ده، پفن تجوید کښې، نوم ی دلیل القرآن دئ. چه تر دې وړاندِ په پښتو کښې دا هسې کامله رساله نه ده تصنیف سوې، دپاره د فایدهِ ستاسي، مِ پمشقت سره جمع کړېده. خداوند جل و علی دې دخپل حبیب په برکت قبول کړي.

بیت

چــه کشــور د افغانـــانو معطــر ســي
دهــر بیــت مصــراع مِ زلفــي د خوبـان کـړ
چه هر بیت مِ د نافهِ په شان خوشبوی سي
برکــت مِ پــه جــزدان پقلمـــدان کـــړ
الــــهي دخپــل حبیــب لــه برکـت
دا ســاده انشــاء رنګینــه د رحمــان کــړ

د کتاب پر پښتی د (۱۳۵۵هـ.ق.) کال د ذالحجې میاشت لیکلي ده او دائې د چاپ کال دئ، چاپ ځای ئې حیدر آباد دئ. چاپ ئې دوهم دئ او چاپ شمېر ئې (۲۰۰۰) ټوکه دئ.

د مولانا صاحب د سریزي څخه داسې معلومېږي، چې دا په پښتو ژبه کې د تجوید د لومړیو کتابو څخه دئ.

2. فیصله پنج مسله:

دا رساله په اُردو ژبه د مولانا صاحب، د جمعې د لمانځه په اړه دپنځو مسئالو مستند او مدلل جوابونه دي. رساله (۸۰) مخه لري. خپرندوی ئې حضرت شاه ابوالخیر اکاډیمي – ډهلی ده. تر فهرست وروسته په یوه مخ کې د خپروندی یادابنت راغلی دئ او په پسې د علامه محمد یوسف بنوري مقاله راغلی ده، چې د مولانا صاحب دمرګ پر وخت ئې د دوی په اړه لیکلې وه، چې په بینات میاشتنی مجله کې په (۱۳۹۵هـ.ق.) کال خپره سوې ده، دلته را اخیستل سوې ده او پسې د ۱۳ مخه څخه د کتاب متن شروع کېږي.

دا د رسالې دوهم چاپ دئ اول چاپ ئې په حیدرآباد کې سوی دئ. د رسالې د دغه چاپ په پای کې د خپرندویي اداري له خوا ځیني مسنونه دعاوي اضافات ورسره چاپ سوي دي او د(۱۰۰) ټوکو په شمېر چاپ سوې ده.

دلیل القاري:

مولانا صاحب په عربي ژبه د (دلیل القاري) په نامه هم یو تجوید کښلی دئ.

ليکوال: ډاکټر نثار احمد صمد واصفي

# جيش الفنا او جيش الطواويس

بسم الله الرحمن الرحيم -افغانستان په يو ډېر حساس ځلور لاري کي موقعيت لري. دا چوک د پېړيو په اوږدو کي د بډايو کلتورونو، خونړيو يرغلونو او سوداګريزو تېرېدنو محراق ؤو. په لرغوني زمانه کي د (ورېښمو لار) وه او په منځنيو پېړيو کي د امپراتوريو د جوړېدني، تېرېدني او نړېدني لاره وه. نو افغانستان هغه هيواد دئ، چي تاريخ ئي همېشه د جغرافيې تابع پاته سوی دئ.

په هر صورت، افغانستان ته د اسلام سپېڅلی دين لومړی د دوهم خليفه حضرت عمر رضی الله عنه د امارت پر مهال را رسېدلی دئ. د اسلام دغه نوراني ځپې له درو خواوو راغلي دي، چي هغه شمال، لوېديځ او جنوب ختيځ دي. د شمال د جبهې مرکز د خلفاء راشدينو پر مهال نيشاپور وو، خو د امويانو پر مهال مروه، د لويديځي جبهې مرکز د سيستان مرکز (زرنج) وو، خو د جنوب ختيځ محاذ چي بلوچستان او کښتني سند وو، ټاکلی مرکز يې نه درلود. (افغانستان درمسير تاريخ. ۷۱ او ۷۲ مخونه)

دا ټولي سيمي ځو ځو واره لاس پر لاس سوي دي، خو په هره نيونه کي ګڼ شمېر افغانان مسلمانېدل. په دې ډول د کافرانو شمېر تدريجاً لږېدئ او د مسلمانانو تعداد ډېرېدئ، ځو چي تر دوو سوو کالو وروسته زموږ نيکه ګان ټوله (تسليم) يعني په اسلام مشرف سول.

په دې ارتباط يوه تاريخي قصه ډېره په زړه پوري ده. په لومړي ځل د حضرت عمر رضي الله عنه د خلافت پر مهال د عربو لښکر د مکران له لوري د پښتنو سيمو ته نژدې سو. خبريال حضرت عمر رضي الله عنه ته ځرګنده کړه، چي داسي ځای ته رسېدلي يو چي «سيمي ئي غرنۍ، خلک ئي مېړني، ميوه ئي خوندنۍ او به ئي ځربني دي.»

حضرت عمر رضي الله عنه ورته وويل: چي سجع وايې که خبر؟

هغه وويل: چي سجع نه وايم، خبر دئ.

حضرت عمر رضي الله عنه وفرمايل: نو دغي سيمي ته وړاندي مه ورځئ. (د افغان ملي تاريخ. لومړی جلد: ۸۷۸ ـ ۸۷۹ مخونه)

همداسي هم وسوه، اسلامي سوقيات همدلته ودرېدل، خو د حضرت عمر رضي الله عنه تر شهيد کېدلو وروسته بيا پيل سول، چي درانه تلفات ئي وزغمل خو بريمن او سوبمن سول.

په هر صورت، د افغانستان بېلابېلي سيمي به عربو (مسلمانانو) فتح کولې خو خايي افغانانو به ځو مياشتي يا ځو کاله وروسته بيرته نيولې. دا مبارزه، مجادله او جګړه په ځينو برخو (خصوصاً لوېديځ) کي آن دوې پېړۍ همداسي روانه وه.

د لومړۍ هجري پېړۍ په دوهمه نيمايي کي د مسلمانانو دوه لوی پوځونه دلته راغلي او جنګېدلي

دي. لـومړنی ئـې جـیش الفنـا او دوهـم ئـې جـیش الطواویس وو. اوس به دواړه مختصراً وپېژنو.

لومړی ـ جیش الفنا:

په ۷۳ هجري کې د اموي واکمن عبدالملک بن مروان له خوا حجاج بن یوسف ثقفي، چې ډېر ظالم او سخت زړی انسان وو، د عراق او خراسان لوی آمر وټاکل سو. حجاج هم امیه بن عبدالله د سیستان حاکم کړ او هغه خپل زوی عبدالله بن امیه سیستان ته راولېږی. هغه په ۷۴ هجري کې سیستان ته راورسېد او بېله ځنډه ئې د رتبیل سره د جنګ اعلان وکړ (رتبیلان یوه شاهي سلسله وه او همدا ئې لقب و خو پاچهان به ئې بېل – بېل واکمنېدل، چې هر یوه ته به ئې رتبیل وایه.)

رتبیل هم له مجبوریته سولي ته حاضر سو او یو ملیون درهمه ئې ومنل او روغه وسوه. څلور کاله آرامي وه. بیا حجاج په ۷۸ هجري کې عبیدالله بن ابی بکره د سیستان حاکم کړ.

عبیدالله بن ابی بکره د یو لوی پوځ سره راغی او د حجاج څخه ئې امر اخیستی وو، چې پر رتبیل به شدیده حمله کوي. خو رتبیل هم ښه خبر او چمتو وو. په بُست کې سخت جنګ پیل سو. چې په ترڅ کې ئې دوه غبنـتلي او مشـهور قومانـدانان (شـریح الحـارثي او عبدالله بن عباس) شهیدان سول. جګړه اوږده سوه او د مسلمانانو پوځیان ډېر وږي او تږي وو، کله چې پسله اوږدې وقفې څخه ډوډۍ تهیه او هغوی ته ورکړه سوه نو خوراً ډېره ئې وخوړل، چې له امله ئې اکثره پوځیان مړه سول. لږ پوځیان چې پاته سول. نو هغوی ته ئې لومړی غوړي ورکړل او بیا ئې په کراره – کراره ډوډۍ خوړلو ته وبلل. په دې ډول د دې لوی پوځ ستره برخه له منځه ولاړه، یا ووژل سول او یا هم مړه سول. څکه نو عربو دغه پوځ (جیش الفنا) یعني پوپناه سوی پوځ وباله. (تاریخ سیستان: ۱۱۱ مخ: افغانستان بعد از اسلام: ۲۰۰ مخ: د افغانستان تاریخ ۶۷ مخ)

حجاج نور هم وخنبمېد او پوځ ئې ښه اکمال او وسلوال کړ. رتبیل هم مخته راغی او په بُست کې سخته جګړه پېښه سوه. رتبیل کرار – کرار شاتګ کاوه او د عبیدالله پوځونو تعقیباوه، څو چې کابل ته نږدې سول او د عبیدالله پوځ ئې د غرونو درو ته ننه ایست او محاصـره ئې کړ. عبیـدالله مجبـور سـو چې اووه لکـه درهمه رتبیل ته ورکړي. دا لا څه، د هغه دا شرط ئې هم له مجبوریته ومانه چې خپل درې زامن (نهار، حجاج او ابی بکره) به د یرغملو په توګه رتبیل ته ورلیږي تر څو بیا د رتبیل سره جنګ ونکړي. عبیدالله مجبـوراً همداسـي وکړه او پـه دې ډول ئې خپـل پاتـه پوځیان راخلاص کړل څو چې د بُست په دښت کې د لوږي او تندي څخه مړه سول. پخپله عبیدالله دومره غمجن سو چې د غوږ د درد له امله په ۷۹ هجري کې مړ سو او پـه همدې بُسـت کـې خـاورو تـه وسـپارل سـو. (افغانستان بعد از اسلام: ۲۰۱. مخ)

پـه دې ډول دغـه لـوی اسـلامي پـوځ د مسلسـلو جګړو، ستړیاوو، تکلیفونو او لوږو له امله کمزوره او د سختو تلفاتو سره مخامخ سو آن ټوله قومانداننان ئې هم لـه منځـه ولاړل. نـو ځکـه ئـې تبـاه سـوی او پوپنـا پـوځ (جیش الفنا) وباله.

دوهم ـ جیش الطواویس:

د عـراق او خراسـان د زون عمـومي آمـر حجـاج بـن یوسف د رتبیل له خوا د عبیدالله د لوی پوځ ناکامي او تباهي ډېر ودرداوه، هغـه خلیفه عبدالملک تـه اطلاع ورکـړه، چـي کـه دې وطـن تـه غبنـتلي او زیـات شـمېر پوځیـان را و نـه لېـږل سـي نـو رتبیـل او ملګـري بـه ئـې سختي ضربې راکړي.

کله چې د حجاج دا لیک اموي دربار تـه ورسـېد، عبدالملک ئې په ځواب کې داسي ولیکل: «خط دې

راورسېدی او د هغه څه څخه خبر سوم، چي مسلمانانو ته په سيستان کي ورپېښ سول. هغه کسان چي له منځه ولاړل اجر ئې په الله اړه لري، خو هغه ټاټوبي ته د لوی پوځ د لېږلو په هکله چي مسلمانان د دې برخليک سره پکښې مخامخ سول. زما رايه دا ده چي څنګه ستا خوښه وي او مؤفق اوسي.» (افغانستان بعداز اسلام: ۵۱. مخ)

حجاج د واکمن په رضايت پوه سو، نو هغه و چي په ۸۰هجري کي ئې د بصرې او کوفې د يو لک او شل زره (۱۲۰۰۰۰) کسيز پوځ څخه لس زره ځېنلی سپور پوځ تيار کړ، په عصري وسلو، عالي روزنه او زښت زيات مصرف سوه ئې اکمال او وسلوال کړ، چي کېدای سي د نن ورځي (کوماندويي او سپېشل فورس) ئې وبولو. له همدې امله دغه پوځ (جيش الطواويس) وبلل سو يعني د طاوس د بڼو په رقم ځېنلی، انتخابي. مجهز او بنايسته پوځ ويل کيږي. چي په دې پوځ دوه مليونه درهمه مصرف سول چي ساری نلري. (تاريخ سيستان: ۱۱۲. مخ)

حجاج خپل يو ډېر لوی سيال او مخالف د دې پياوړي پوځ قوماندان کړ، چي هغه عبدالرحمن بن محمد بن اشعث وو. د عبدالرحمن په قومانده د طاوسانو دغه تکړه او مجهز پوځ په ۸۰هجري کي سيستان ته راورسېد. خو متاسفانه دلته د سيستاني کافرانو څخه علاوه ګڼ شمېر خوارج هم اوسېدل، چي د معاويه د سلطنت سخت مخالفان ول او څو ـ څو واره ئې وينړې جګړې هم ورسره کړي وې (دوی مسلمانان او د امويانو سخت مخالف ول، چي د خراسان د مختلفو برخو څخه دلته راغلي او ميشته سوي ول. دوی چي به د امويانو پر ضد راووتل يعني خارج به سول نو وروسته خارجيان يا خوارج وبلل سول.)

متاسفانه د عبدالرحمن لومړنی مقابله د همدې خوارجو سره وسول، چي مشر ئې هميان بن عدی سدوسي وو. د دواړو خواوو ډېر جنګيالي ووژل سول، څو چي عبدالرحمن بريمن سو. ده وروسته په زړه کي خپل پوځونه له سره منظم کړل او د سيستان په منبرونو کي ئې په احساساتي وينااوو سره مسلمانان د رتبيل او کفارو له خطره پوه کړل (افغانستان بعد اسلام: ۲۰۳ مخ). خو د دې هر څه سره ـ سره د ده غښتلی کوماندويي پوځ (جيش الطواويس) تر اصلي جنګ مخکي ډېر استهلاک او کمزوره سو.

خير، کله چي رتبيل خبر سوژر ئې خپل استازی د عبدالرحمن حضور ته واستاوه، ورته وې ويل چي تېر هېر کړه. په بدل کي د ټولي ماليې درکولو ته تيار يم، خو عبدالرحمن دا وړانديز رد کړ او مخ پر بُست راوخوځېد. (د افغانستان تاريخ: ۶۷. مخ)

رتبيل هماغه پخوانی تاکتيک چي د عبيدالله په مقابل کي ئې کارولی وو. بيا پلي کړ يعني کرار ـ کرار پرشاتګ او په خان پسي تنګو درو ته ننه ايستل او هلته محاصره کول او تسليمول. خو عبدالرحمن دا تخنيکونه درک کړي وه نو ځکه ئې د پرمختګ پر مهال شا ته امنيتي پوستې اچولې تر څو د اصلي پوځ سره نبغ ارتباط موجود وي. خو هغه د دې سره سره دا لويه اشتباه وکړه، چي د ژمي تر رارسېدو مخکي ئې رتبيل مات او کابل فتح نکړای سو. ده تر کابل پوري د ټولو سيمو د نيولو خبر حجاج ته ولېږئ او ضمناً ئې هغه متوجه کړ، چي له يوې خوا سوړ ژمی را روان دئ او له بلي خوا په دې غرونو او کوتلونو کي پرمختګ ستونزمن دئ، نو موږ به د راتلونکي کال په پسرلي کي پر کابلشاه بريد کوو. دا ځکه چي د عربو آسونه په هوارو دښتو کي پياوړي ول. خو په غرونو کي د ګرځېدو راګرځېدو وړ نه ول.

حجاج درې پرله پسې خطونه ورته راولېږل. په لومړني کي ئې تنبل او آرام طلبه وباله؛ په دوهم کي ئې

د چټک یرغل امر ورته وکړ؛ خو په درېیم کې ئې له دندې د شړلو او احضارولو اخطار ورکړ.

عبدالرحمن د حجاج دغه لیکونه د خپل اردو مخې ته کښېښوول او ورته وې ویل: «حجاج امر راته کوي چې د دښمن پر خوا ور ودانګم، لاکن دا یو داسې وطن دئ چې پرون ستاسو وروڼه پکښې تباه او برباد سوي دي، نو ځکه نه غواړم چې د حجاج دا امر پر ځای کړم.»

عبدالرحمن د ټولو افسرانو او عسکرو ځخه مشوره وغوښته. پوځیانو او قوماندانانو د حجاج پر ضد نظر ورکړ او حتی د هغه له منځه وړل ئې وغوښتل. عبدالرحمن هم د هغوی خبره ومنل او وروسته د کابلشاه (رتبیل) سره وړغېد، د هغه سره ئې په دې شرط سوله وکړه چې که پر حجاج بریمن سم نو هیڅکله به ستا ځخه باج (ججه) او مالیه و نه غواړم، خو که مات سم نو ته به پناه راکوې، رتبیل ورسره ومنل او ټرون لاسلیک سو. نو هغه و چې عبدالرحمن مخ پر عراق د حجاج مقابلې ته ورغی.

په ۸۲ هجري کې په بصره کې د حجاج سره وجنګېد خو د واکمن عبدالملک له خوا د حجاج سره د پوځي مرستې په زور عبدالرحمن مات سو، ځو چې د ټرون له مخې ئې رتبیل ته پناه یووړه. (د افغانستان تاریخ: ۶۹ـ ۷۱ مخونه؛ پښتانه د تاریخ په رڼا کي: ۲۵۷ مخ؛ افغانستان بعد از اسلام: ۲۰۵ـ۲۰۶ مخونه). په دې ډول (جیش الطواویس) هم د (جیش الفنا) په برخلیک مبتلا او تباه سو.

حجاج د رتبیل سره رابطه وکړه او عبدالرحمن ئې ختني وغوښت، خو عجیبه تصادف پېښ سو او هغه دا چې عبدالرحمن دا وخت د سِل (نري رنځ) په ناروغۍ مبتلا وو، چې له امله ئې وفات سو (۸۵ هجري). د یو بل روایت له مخې هغه ځان د غره ځخه را وغورځاو او پیره دار سره یو ځای ووژل سو، ځکه په کوم ځنځیر چې عبدالرحمن تړلی وو، د هغه سرې (پیردار) په ملا پورې هم تړلی وو، رتبیل د عبدالرحمن ځخه په مړیني سر پرې کړ او حجاج ته ئې ولیږی. (پښتانه د تاریخ په رڼا کې: ۲۵۸ مخ)

رتبیل خو دا وو کالو (په بل روایت د نهو کالو) له پاره د خلافت د مالیې او ججې ځخه معاف سو او مهمه لا دا چې د همدومره کلونو له پاره د مسلمانانو د حملو ځخه هم وژغورل سو. خو هغه بیا هم یو افغان وو، غیرتي وو، زړه ور او د کلک عزم ځښتن وو. نو ښایي پر خپل دغه شرمناکه عمل به وجداناً خپه وو، خو خپل مقام، خپل هیواد او خپل ملت ډېر پر ګران وو او د دې ګټو له پاره ئې هر ډول عمل کاوه.

هو! دا هغه ظالمانه جفا او بې لوظي وه، چې رتبیل (کابلشاه) د هغسې یو غیرتي او مدبر سپهه سالار سره وکړه، چې ټینګه ژمنه، قول او قسم ئې ورسره کړی وو. پس د یو تاریخ حقیقت په توګه افغانانو اسلام په ډېرو سختو قربانیو سره منلی دئ او په همدومره سختو قربانیو به ئې ساتي.

---

اړونده اخځونه:


۱. افغانستان درمسیر تاریخ: میر غلام محمد غبار، مطبعه دولتی، کابل، ۱۳۴۶ (۱۹۶۷).

۲. د افغان ملي تاریخ، لومړی جلد: قدرت الله حداد (فرهاد). د ساپي د پښتو څېړنو او پراختیا مرکز، ۱۳۸۳ ل.

۳. تاریخ سیستان: نویسنده: نامعلوم: مصحح: ملک الشعرا بهار، مطبعه دولتي، کابل، ۱۳۶۶ شمسي.

۴. افغانستان بعد از اسلام: عبدالحی حبیبي، بنګاه انتشارات میوند، کابل، ۱۳۸۶ شمسي.

۵. د افغانستان تاریخ: احمد علي کهزاد، ژباړن: اورنګ ریب ارشاد، دانش خپرندویه ټولنه، کابل، ۲۰۱۰.

۶. پښتانه د تاریخ په رڼا کي: سید بهادر شاه ظفر کاکاخیل، یونیورسټی بک ایجنسي، (شپږم چاپ)، پېښور، ۲۰۰۶.

پوهنیار مطیع الله روهیال

# په پښتو ژبه کې د استتار مسئله

ستر او استتار دواړه د پټولو په مانا د عربي ژبې مصدرونه دي. لومړی هغه ئې مجرد او دوهم ئې له مزیدفیه مصادرو څخه دئ. هغه څه چې پټ سوي وي مستَتَر بلل کېږي چې مفعولي حالت دئ، او څوک چې په فاعلي ډول دغه عملیه تر سره کوي هغه ته مستَتِر یعني پټوونکی ویل کېږي. په عربي ژبه کې د استتار مسئله دوه اړخه لري. یوه ته ئې حذف وایي دوهم ئې د اضمار (پټول) په مانا کارېږي. د عربي تر څنګ د استتار مسئله په ځینو نورو ژبو کې هم یوه ژبنۍ پروسه ده، چې د وخت په تېرېدو سره په هره ژبه کې د عملي کېدو وړ ده.

په عربي کې دِ استتار علتونه لنډون او د ځینو کلمو زیات استعمال بلل سوی دئ.

د عربي استتار دوه مثاله په لاندي ډول دروړاندي کوم:

د سورت اخلاص لومړی آیت داسي وایي:

قُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ.

"ووایه هغه الله یوازي یو دئ".

په دغه امریه جمله کي یو چا ته امر کېږي، چي هغه حضرت پیغمبر دئ، یعني ته ووایه! دلته تر (قل) وروسته د (انت) ضمیر مستتر دئ. دوهم مثال ئې دا دئ:

د سورت یوسف ۸۲ آیت داسي وایي:

وَسْـَٔلِ ٱلْقَرْيَةَ ٱلَّتِى كُنَّا فِيهَا وَٱلْعِيرَ ٱلَّتِىٓ أَقْبَلْنَا فِيهَا ۖ وَإِنَّا لَصَـٰدِقُونَ. (سورة یوسف، آیت ۸۲)

"ته د هغه کلي له خلکو څخه پوښتنه وکړه چي موږ پکښي وو. له هغه کاروان څخه پوښتنه وکړه چي موږ ورسره راغلي وو. موږ په خپله وینا کي بېخي رښتیني یو".

دلته خبره په "وسئل القریة" کي ده، له کلي څخه پوښتنه کېدای نه سي، مراد دا دئ چي د کلي له اهل یعني هغو خلکو څخه پوښتنه وکړه چي په کلي کي اوسېږي، له دې څخه معلومېږي چي په دغه ترکیب کي د (اهل) مورفیم پټ دئ.

د پښتو استتار د عربي سره ډېر ورته والی لري. موږ هم ځيني فونيمونه او مورفيمونه پټوو، علت ئې د عربي غوندي په ژبه کې لنډون يا اختصار بلل کېدای سي. د استتار پروسه په يوه ژبني چاپېريال کي يوه طبيعي پروسه ده. خو زه دغي پروسې ته د تاريخي ژبپوهني له عينکو څخه گورم او د خورا ډېرو نورو تاريخي تحولاتو له جملې څخه يوه هم د استتار ژبنۍ عمليه ده، چي په پښتو ژبه کي هم د تطبيق وړ ده. د پښتو بېلابېلو لهجو. نه يوازي دا چي د دغي ژبي د لغتونو په ساتنه کي رغنده کار کړی دئ، بلکي د دغي ژبي د گرامري جوړښتونو او نحوي موضوعاتو په باب ئې هم د دې زمينه برابره کړېده، چي د دې ژبي په بېلابېلو لهجو کي د دغسي گرامري نکتو څېړلو زمينه مساعده سي.

د پښتو په مروجو ژبنيو کتابونو کي د استتار پر يادونه پېښ سوی نه يم، خو اروابښاد پوهاند محمدرحيم الهام په خپل اثر (روش جديد در تحقيق دستور زبان دری) کي په ډېر لنډ ډول د استتار موضوع را اخيستې ده او د (مورفيم مستتر) تر عنوان لاندي ئې څېړلې ده، هغه وايي : "دستور نويسان زبان دری غالباً در افعال برای سوم شخص مفرد يک ضمير متصل را بحيث فاعل فعل مستتر ميپندارند. مثلاً در کلمهٔ "رفت يا مى آيد" ميگويند که فاعل آنها يعنی ضمير متصلی که از اسم يا ضمير منفصل نماينده گی کند پنهان و مستتر است." (پورته اثر : ۴۶مخ)

ځيني کسان دانگرېزي ژبي ځيني Silent فونيمونه د دغي ژبي رغيز استتار بولي، چي په مثال کي ئې د knife، night، light او دغسي نوري کلمې راوړي. په لومړيو دوو کي د (gh) رغيز استتار او په وروستۍ هغه کي ئې د (k) رغيز پټوالي موجود دئ.

په پښتو کي هم د نورو ژبو غوندي د فونيمونو او مورفيمونو استتار موجود دئ. د نورو ژبو غوندي به ئې علتونه لنډوالی او د ځينو لغتونو زيات استعمال وبولو، چي د هري ژبي په ژبنيو څېړنو کي تر څېړني لاندي نيول کېږي. خو د پښتو ژبي ځينو لهجوي توپيرونو دغي پروسې د نورو ژبو په نسبت زياته لاره هواره کړېده. د مورفيمونو په برخه کي ما يوازي يو ناخپلواک مورفيم وموند چي په نحوي چاپېريال کي له منځه ځي خو فونيمي يا رغيز مثالونه ئې په پېخر دي. که د دغي ژبي گرامري او ژبني جوړښت ته وکتله سي، نو معلومېږي چي دغه ډول استتار د وخت په تېرېدو سره پېښ سوی دئ. مانا دا چي په اساس کي استتار ځای نه لري، خو کله چي ژبني توکي ډېر استعمال سوي نو بيا لنډ سوي او ځيني فونيمونه ئې پټ سوي دي. زه د پښتو ژبي د استتار په پروسه کي د دغي ژبي د مورفو فونيميکي اوښتنو څخه د حذف عمليه هم شامله بولم، څکه هغه هم د وخت په تېرېدو سره رامنځته سوې ده، البته دا زما نظر دئ، صحت او عدم صحت ئې نورو تحقيقاتو ته محتاجه دئ. په آخر کي به دا هم ووايم چي د پښتو ځيني رغيزي پټوني د دغي ژبي د نورو لغتونو سره د التباس سبب گرځي. که دغه ټکر په پام کي ونيسو او په ليکلې بڼه ئې له استعماله ډډه وسي د ژبي په گټه خبره به وي.

اوس به د دغسي استتار ځيني مثالونه وگورو ،تر څنگ به ئې د التباس او ټکر پر څرنگوالي لږ و ډېري خبري وکړو :

فونيمي استتار

د(ي) استتار:

ولاړی = ولاړ، دغه ولاړ د (ولاړ = ايستاده) سره د ټکر سبب ګرځي. په ځينو لهجو کې ئې (واو) هم پټېږي او د(لاړ) په شکل ويل کېږي، دلته نه يوازي دا چې د (لاړ = د مرغلرو لاړ) سره د ټکر سبب کېږي، بلکې د مطلقيت مختاړی (واو) هم ځنې ايسته سوی چې د ماضي يا تېري زمانې استازيتوب پکښې له منځه تللی دئ.

واغوستی = واغوست، واغوسته

ولوستی = ولوست. ولوسته او داسې نور

د(زور يا هـ) استتار:

لمنه = لمن

مېرمنه = مېرمن

ستنه = ستن

برستنه = برستن

ولوسته = ولوست

واغوسته = واغوست

د جنوب په لهجه کې وايي: غونډه جوړه سول، دلته په (سول) کې (هـ يا زور) مستتر دئ. که په شفاهي ډول د دغسي څه ويلو تر غلطۍ پېښه واړوو خو په ليکني ډول مطلقه غلطي ده. په عيني ډول په ځينو لهجو کې ويل کېږي: احمد راغلی ده. دلته هم د (ي) اړول په (هـ) سره يوه شفاهي سهوه ده، خو ليکل ئې ګرامري تېروتنه ده.

د الف استتار:

اولس–ولس

اولسوالي–ولسوالي

اولسمشر–ولسمشر

د(خ) استتار:

بخښل = ښښل

بخښنه = ښښنه

د(ړ) استتار:

کښېږده = کېږده

پرېږده = پرېده

د(ښ) استتار:

کښېښستل = کېښستل

کښې ايستل = کې ايستل

کښېنه = کېنه

د(پ) استتار:

ځپور = خور

سپور = سور

د(واو) استتار:

ورور = رور

ورونه = رونه

د(د) استتار:

کښېښود = کښېښو، لکه د قلندر اپريدي په دې بيت کې:

ننګ و نام مې له خاطره بېرون کښېښو
نن مي څرنګ پر ځان نوم د مجنون کښېښو

**د (ړ) استتار:**

د جنوب په لهجه کي راکړه د (راکه) او ورکړه د (ورکه) په ډول ویل کېږي. چي په دواړو کي (ړ) مستتر سوې ده. دغه ډول د واخله پر ځای چي (واخه) وایي (ل) ئې پټ دئ. دغه کلمه د شرقي لهجه کي د (واله) په شکل ویل کېږي، چي هلته بیا (خ) مستتر سوېده.

**مورفیمي استتار**

د (په) سریني سره (باندي) حتمي دئ. کله چي مور وایي: "پر مېز ئې کښېږده" مانا دا چي: "پر مېز باندي ئې کښېږده". دلته د (باندي) ناخپلواک مورمیم مستتر دئ. (وسو = وسوځېد).

په آخر کي به ووایم چي په دیفتنګ (diphthong) ږغو کي هم له دوو بدلېدونکو واولو څخه د یوه واول د پټېدو یا پیکه کېدو مسأله ګورو.

مرحوم حاجي عبدالحمید ارغنداوی

# غوړ مال څوک دئ؟

غوړمال هغه څوک دئ، چي په یو هیواد کي د پرګنو پاځون ته ظاهري لبیک وایي، د هر ډول بدلون سره په ټولنه کي خپل ځان اوکړه وړه عیاروي، ژر تر ژره یا په تدریجي توګه دلویانو در بارته لار پیداکوي.

داسي کسان لکه د شمعي پتنګان پرشمعي تاوېږي او راتاوېږي او د خپلي درواغجني میني اظهار کوي، خو داسي څوک د پتنګانو غوندي حقیقي مینه نه لري او د بلي شمعي په لمبه ځان نه سوځي روغ رمټ ځان ترې راباسي او د شمعې له ژړاسره د زړه له کومي خواخوږي نه لري.

هغوی کله ناکله لویانو ته د خپل ناولي ارمان د تحقق لپاره دوکه ورکولای سي. غوړمالان د لویانو په وړاندي خپل تګ لوري او بڼه په ډېره چټکي بدلولای سي، دوی د خپل ځاني ګټو د تحفظ لپاره هر ډول نېرنګ ته پناوروړي، په نرمه ژبه او خوږ ند مغزي هر څه تر لاسه کولای سي.

د غوړمالانو اصلي خصوصیت په دې کي دئ، چي په ټولنه کي هر ډول بدمرغیو ته ډېري ښې جامې وراغوندي، لویان غولوي او د اولس کړاوونه او غوښتني ئې له نظره پټي ساتي، هغوي ته داځرګندوي، چي هر څه مخ په وړاندي روان دي او پخپل دغه ناوړه عمل سره لویان غافلوي.

داسي کسان وطن ته د خدمت په لار کي د پرمختګو نوخنډګرځي د اولس د ښوزلي خیال نه ساتي، د داسي کسانو لیري ساتل یو لازمي امردئ. لویان باید د اولس مشکلات له نژدې پخپلو سترګو ووینې په حالولو کي ئې د خپلو ټولو امکاناتو څخه کار واخلي.

دا غوړمالان چي د اولس او حکومت ترمنځ بیلتون رامنځته کوي او د هیواد د پرګنو غوښتني بې ځایه ګڼي نه د هیواد د پرګنو سره مینه لري او نه ئې د ګټو خیال ساتي او نه د ملي وحدت په لارکي خپل مسئولیت ترسره کوي. غواړي هر څه د دوی د ګټو پر معیار راوځرخي. ملي وحدت چي زموږ د ټول اولس واقعي ارمان دئ، دغه ارمان ته زیان رسوي، ځاني ګټو ته پر اجتماعي ګټو ترجیح ورکوي.

غوړمالان د خوارانو سلام هم نه اخلي او د قدرت خاوندانو ته سر او مغزي دواړه ټیټوي او د هغوی د خوشحالتیا لپاره دوه ځلي خاندي.

قاري مطیع الله ذهین

# په پښتو ژبه کې د قرآن کریم ژباړې او تفسیرونه

(درېیمه برخه)

۱۳ـ آسان تفسیر ـ د توبې سوره: دا د قرآن کریم د فاتحې (الحمدلله) او توبې سورتونو دروانې او تفسیر ژباړې او لازمو څرګندونو سره د قران کریم د آیتونو، صحیحو احادیثو او معتبرو تفسیري روایتو په رڼا کې په اوسمهالې معیاري پښتو سره لنډ، خو پر ګټو فوایدو او ښېګڼو مشتمل تفسیر دئ، چې ژباړه او تفسیر ئې پیاوړي لیکوال او د حرمینو شریفینو مؤرخ عبدالمالک همت تر سره کړی او په (۱۳۹۴ هـ) کال کې چاپ او خپور سوی دئ.

د تفسیر د لیکلو او وړلو ترتیب ئې داسي دئ، چې لومړی څو آیتونه راوړل سوي او بیائې د دغو آیتونو لنډه او روانه ژباړه، د آیتونو د شمېرو په ترتیب ایښودل سوې ده. ورپسې د «تفسیري ژباړې» تر سرلیک لاندې یو ـ یو آیت لږ څه په تفصیل سره ژباړل سوی دئ او داسې تفصیلي یا تفسیري جملې د آیت د اصلي ژباړې په دننه کې د لینديو (قوسونو) په منځ کې راوړل سوي دي. البته که مؤلف د تفسیري یا تفصیلي ژباړې پر مهال وکم (کوم) آیت ته عنوان او سرلیک اړین بللی وي، نو هغه عنوان او سرلیک ئې هم د تفسیري ژباړې ترمخه ورکړی دئ.

د (څرګندونې) تر عنوان لاندې لومړی د ځینو هغه آیتو نو، چې د نازلېدو د لاملونو په اړه ئې و څېړنې او شننې ته اړتیا وي، لیکوال پر هغه څېړنه او تحقیق کړی او ورپسې ئې د آیت د ځینو لغتونو، کلمو او مفرداتو معناوې او تشریح کړې. که د کوم آیت د ژباړې په منځ کې د څه تفسیري توضیح اړتیا لیدل سوې وي نو په تفسیري ژباړه کې ئې هلته و همهغه ځای ته د لینديو (قوسونو) په منځ کې شمېره ورکړې او بیائې هغه شمېره د مفرداتو تر تشریح او څېړنې وروسته راوړې او اړونده تشریح او توضیح طلبه ځای ته ئې تشریح او توضیح ورکړې ده.

لیکوال د خپل دې کار او ژباړې په اړه لیکي: «ما د خپل وس سره سم کوښښ کړی، چې د قرآن کریم موخه او مطلب په آسانه، محاورې سره سم او روان انداز څرګند سي. ما دغه ژباړې ګرد سره لفظي او ټکي په ټکي هم نه دي کړي او دونې آزادې هم نه دي، چې د قرآن کریم له الفاظو څخه بهر لیري و اوسي.[۱]»

بل ځای لیکي: «د آیتونو د نزول تر هغو لاملونو تېر سوی یم، چې پر ضعیفو او ناسمو روایتونو بنا وه او د کوم آیت د نازلېدو سبب، چې د صحیحو حدیثونو او روایتونو او د علمای کرامو د څرګندونو له مخي سم او صحیح را ته جوت سوی دی، هغه ته مې ځانګړی (د

[۱] دلیکوال سریزه (مخکني خبري)، ۹مخ.

آیت د نازلېدو د لامل په اړه څېړنه) سرلیک ورکړی او په اړه مې لازمه څېړنه کړې ده. مطلب هیڅ خای مې د لوی څښتن کلام په نامعتبرو خبرو نه دی تفسیر کړی او نه مې د کوم آیت د شان نزول په هکله پر ناموثق روایت اعتماد کړی دی.[2]»

په دې تفسیر کې لومړی د تعوذ (اعوذ بالله)، تسمیې (بسم الله...) او سورة الفاتحې تفسیر راغلی او بیا د توبې سورت تفسیر او ترجمه د لازمو څرګندونو او تشریحاتو سره راغلې او په پای کې ئې (۱۲۱) هغه بېلا بېل ماخذونه، چې د دې تفسیر په لیکلو کې ورڅخه ګټه اخیستل سوې ده هم رواړي دي.[3]

استاد حاجي عبدالمالک همت د مولوي عبدالرازق زوی او په (۱۳۳۲ هـ) کال کې د کندهار په سوزني کې پیدا سوی دئ، په اسلامي او ټولنیزو علومو کې ئې خصوصي زده کړې کړې دي او پر دې تفسیر سربېره ئې د علومو په نورو برخو کې هم ګڼ نور مغتنم لیکلي او ژباړلي اثار چاپ سوي دي، لکه: زموږ د قبلې تاریخ، زموږ د نبي مېنه (د مدینې منورې تاریخ)، ادب او ادبي کره کتنه، د مقالې لیکو اصول، د حق او باطل جګړې، پښتو معلم الحجاج (ژباړه)، پوپنا سوي ولسونه (ژباړه) د سید جمال الدین افغاني اند او ژوند (ژباړه) او ګڼ نور.

**۱۴. تفسیر د دولسم ټولګی لپاره:** دا د ښوونځیو او مدارسو د دولسم ټولګي له پاره په (۲۲۰) مخونو کې، چې پر ۶۴ لوستونو وېشل سوی، د قران کریم د دوو وروستیو سپارو (۲۹-۳۰) بشپړ تفسیر دئ، چې د تعلیمي نصاب د تفسیر کمېټې له خوا تهیه سوی او لیکل سوی دئ او د افغانستان د اسلامي حکومت د تعلیم او تربیې وزارت- د تعلیمي نصاب متحد دي اداري[1] له خوا په (۱۳۷۲هـ ش - ۱۴۱۳هـ ق - ۱۹۹۳ م) کال کې د اسلامي تعلیمي مرکز تر نظر لاندي چاپ سوی دئ.

که څه هم له ښه ډېره وخته راهیسې د افغانستان د تعلیمي نظام په ثانویه دوره کې د ۱۰-۱۱-۱۲ ټولګیو له پاره تفسیر د یوه مضمون په حیث تدریسېږي او د ښوونځی د دورې د لوړو ټولګیو د درسي کریکولم او مفرداتو یوه حتمي او لازمي برخه وه او ده او هم هر پرهیواد حاکم نظام د نصاب لیکلي کتابونه ورته برابر کړي خو دا تفسیر، چې د لته معریفي کېږي په هغو ټولوکي د قرآن کریم د دوو وروستیو سپارو یوښه او نسبتاً مشرح او بشپړ تفسیر دئ، چې نه یوازي د ښوونځیو او مدارسو د زده کوونکو له پاره بل لا د نورو لوستونکو له پاره هم یوښه ماخذ او موثق تفسیر بلل کېدای سي.

د دې تفسیر په لیکلو او ترتیبولو کي له لاندي معتمدو او موثقو تفاسیرو څخه استفاده سوې ده؛ لکه: تفسیر ابن کثیر، تفسیر مظهري، کشاف القرآن، فی ظلال القرآن، تفهیم القرآن، معارف القرآن، کابلی تفسیر، تدبر القرآن او په ترجمه کې ئې د شاولي الله محدث دهلوی رحمه الله له مترجم قرآن (فتح الرحمن) څخه استفاده سوې ده.

په دې تفسیر کې چې یوازي د قرآن پاک د دوو وروستیو سپارو تفسیر دئ، پر ترجمه او تفسیر سربېره د سورتونو لنډه پېژندنه، د ناز لېدو زمانه ئې، موضوع او مضمون ئې، په آیتونو کي د راغلو کلماتو او مفرداتو معنا او بالاخره تر هر درس وروسته په همغه درس کي د راغلو آیتونو د مطالبو لنډیز هم شمېره واله ټکښي راغلی دئ.

---

[2] دلیکوال سریزه (مخکنی خبري)، ۱۰مخ.

[3] دخوښی خای دادئ، چې استاد هیمت صاحب یوازي د دې یوه سورت پر تفسیر او ترجمه بسنه نه ده کړې. بلکي د ټول قرآن پاک په تفسیر او ترجمه کولو مصروف دئ، چې تر اوسه ئې څه باندي دوه ثلثه قرآن تفسیر او ترجمه کړی او د پاته هغه په تفسیر او ترجمه کولو مصروف دئ. چې تر اوسه ئې یوازي دفاتحې او توبې سورتونه د نمونې او کتلو لپاره چاپ سوي دي. لوی رب جل جلاله دې استاد همت صاحب ته ډېر- ډېر اجرونه ورپه برخه کې.

[1] د تعلیمي نصاب متحده شورا یا د تعلیمي نصاب متحده اداره د افغانستان د مجاهدینو اسلامي اتحاد کي د شاملو تنظیمونو ګډه عالي شورا وه. چې د نصاب د تهیې او ترتیب له پاره ئې ګڼې کمېټې درلودې. چې له هغو څخه یوه ئې د تفسیر او تجوید ګډه کمېټه وه.

۱۵ـ آسانه ترجمه: دا د شاه ولي الله محدث دهلوي رحمه الله په لاس د قرآن کریم لیکل سوې آسانه، روانه، خوندوره، جامع، مستنده او له معنا ډکه ترجمه ده، چي له ترجمې سره ئې ځای ـ ځای لنډي تفسیري نقطې هم په خورا جامعیت سره ورسره راوړي دي.[۵]

د دې قرآني ترجمې پښتو ژباړن د پېښور پوهنتون د اسلامیاتو او عربي څانګي مخکني رئیس مولانا ډاکټر سید سبعید الله جان (مازاره) دئ، چي د ډاکتر محمد دین[۶] په اهتمام په یوه ټوک ۹۶۲ موخونو کي د پېښور د تاج کتب خانې له خوا چاپ سوې ده، خو د ژباړې چاپ او خپرېدو کال نه دئ پر لیکل سوی.

د قرآن کریم په دې پښتو پېښورۍ ترجمه کي قراني آیتونه په تحت الفظي ژباړې سره ژباړل سوي دي او د دې پر څنګ هغه تفسیري نقطې او څرګندوني، چي د شاه صاحب رحمه الله په فارسي ترجمه کي هم راغلي دي، ورسره را ژباړلي او په حاشیو کي ئې لیکل سوي دي.

شاه ولي الله دهلوي رحمه الله خورا جامع، منل سوی، هر اړخیز او دلوی نفوذ لرونکی شخصیت وو، چي په یوه وخت کي مفسر، محدث، فقیه، اصولي، متکلم، مفکر، صوفي او دخپل وخت مجدد وو. دا لوی عالم په (۱۱۱۴هـ ق) کال د شوال په میاشت کي چي د (۱۷۰۳م) کال د فبرورۍ میاشتي سره برابرېږي په هندوستان کي پیدا سوی دئ.

د شاه ولي الله رحمه الله اصلي نوم قطب الدین احمد وو، مګر په اسلامي نړۍ کي او س ترخپل اصلي نامه په شاه ولي الله سره ډېر اوځار او مشهور دئ. پلار ئې شاه عبدالرحیم وو، چي د حنفي فقهي له جیدو علماوو څخه شمېرل کېږي.

د شاه صاحب د نسب سلسله د پلار له خوا په ۲۹ پښت کي و سید نا عمر فاروق رضی الله عنه ته او د مور له خوا ئې د نسب سلسله تر موسی کاظم رحمه الله پوري رسېږي، نیکه ګان ئې لومړی له مدیني منورې څخه ویمن ته او له هغه ځایه د مغلو دبرید پر مهال هندته مهاجر سوي دي.

شاه ولي الله رحمه الله ډېري ستري دعوتي، علمي، فکري، اصلاحي او تجدیدي کار نامې تر سره کړي، هغه دعلمي، تدریسي او تصنفي مصروفیتونو سره ـ سره دېې نظمي او انارشۍ په وخت کي د مسلمانانو لوی خدمت وکی، د اسلام د حفاظت له پاره او دهندوانو او مرهټیانو د ظلم څخه د مسلمانانو د ژغورني لپاره ئې احمد شاه بابا پر هندوستان د حملې لپاره وروغوښت، چي د (۱۷۶۱م) کال د پاني پت په جنګ کي ئې و مرهټیانو ته شرمونکې ماته ورکړه.

شاه صاحب رحمه الله تقریبا پر ټولو اسلامي موضوعاتو لیکني کړي دي، دا چي د عربي او فارسي دواړو ژبو ښه ماهر وو، نوځکه ئې په دواړو ژبو کي لیکني او تصنیفات هم سته[۷] چي د قران کریم پر فارسي ترجمه سر بېره ځیني ئې دا دي: حجة الله البالغه (عربي)، الا نصاف فی بیان سبب الاختلاف (عربي)، ازالة الخفاء عن خلافه الخلفاء (فارسي)، مصفی شرح مؤطا (فارسي)، الفوز الکبیر فی اصول التفسیر (فارسي)[۸] او ګڼ نور.[۹] نور بیا...

---

[۵] دا ترجمه د فتح الرحمن فی ترجمه القرآن په نامه سره زموږ ځیني علماوو معرفي کړې ده.

[۶] ډاکتر محمد دین په اسلامیاتو کي پي ایچ ډي (دوکتور) کړې ده او د پېښور پوهنتون د اسلامیاتو استاد وو، هغه مرحوم په پښتو ژبه کي په پېښورۍ لهجه د قرآن ترجمه آسانه، تکي په تکي او روانه ژباړه د تعلیم القران په نامه لیکلې، چي ژباړه ئې د قرآن ترجمه تر [illegible] لاندي په دوو کرښو کي ده، چي یوه ئې لفظي او بله ئې روانه ژباړه ده، وګ[illegible] ی ځاتور میاشتنۍ خپرونه ـ پر له پسې ۴۷م او داووم کال شپږمه ګڼه، ۵مخ.

[۷] د شاه صاحب رحمه الله لیکني ډېري دي، چي ځیني مؤرخین ئې شمېر تر ۲۰۰ هم زیات بولي او ځیني ئې شمېر تر ۵۱ ښوولی دئ، خو داتې ورسره ویلې دي چي په لیکنو کي ئې نور هم زیات کتابونه په زړو کتاب خانو کي سته. (زموږ مصنفین او دهغوی کار او زیار؛ ج ۱؛ ص. ۴۵) کېدای سي چي د دې خبرې هدف به دا وي چي هغه تر اوسه ناچاپه دي او یا هم بېځي لمنځه تللي دي.

[۸] د شاه صاحب په کتابونو کي حجة الله البالغه، الانصاف فی بیان سبب الاختلاف، الفوز الکبیر في اصول التفسیر هم پښتو ته ژباړل سوي دي.

[۹] وګورئ: زموږ مصنفین او دهغوی کار او زیار؛ ج ۱، ص. ۲۸-۴۸. په هند کي تفسیر او مفسیرین موخونه: ۸۱-۸۹. الفوز الکبیر فی اصول التفسیر پښتو ژباړه موخونه ۱۲-۱۷.

داکتر عبدالرازق پالوال

# د سپوږمۍ پیدایښت

ښه ډېر کلونه تر مخه مې چیرې لوستلي وه، چې سپوږمۍ (ووږمه، تروږمۍ) له دغې مځکې ځخه نوږېدلي یا بېله سوې ده. پوهانوئي د نوږېدني یا بېلېدني ځای هم کاهل بحر یا بحرالکاهل ښوولئ ؤ. پوښتنه دا ده، چې داولي او کله له دغه ځایه نوږېدلې ده؟

زما نه په یادېږي چې و دغو دوو پوښتنوته ئې ځنگه جوابونه ویلي ول، یائې ویلي نه ول. خو نجوم پوهان (Astrunomprs ) به خود هرومرو په دغه اړوند خپل نظریات لري. زه داسي فکر کوم چې یادي په مځکې کښې یوه لویه چاودنه سوې وه، او دا دي ئې ایسته غورځولې وي.

بل دا چې پرخان باندي د مځکي ځرخېدنه به هم په داسي شدت سره نه وه، چې سپوږمۍ دي ئې له خان ځخه ایسته غورځولي وي، لکه نمر چې خپلي سیارې له خان ځخه ایسته غورځولي دي. پس د نوږېدني یا له مځکي ځخه د دې د بېلېدني عامل په ځه ؤ؟ په دې کښې خو ځه شک اوشپیان نسته چې دا دمځکې لورده، یا له مځکي ځخه نوږېدلې ده. خو پوښتني دادي: چې دا ولي، ځنگه او د مځکي له کومي برخي ځخه ئې بېله سوې ده؟؟

زما په اند سره دا د کاهل (pacibic ) بحر له سیمي ځخه نوږېدلې یا بېله سوې نه ده. زما په اند دا دمځکي له هغه ځایه ځخه نوږېدلې ده، چې په مځکه کښې ئې یوه تشه یا خلا جوړه کړې ده دغه تشه ئې هغه زمان لنډ یا په ځنډ سره شمالي او سوهیلي امریکا ډکه کړې ده. ای شمالي او سوهیلي امریکا به هغه زمان له اروپا او افریقا ځخه نوږېدلې وې او و ووږمې پرې ایښې تشي ته به ورښویېدلي وې او هغه تشه به ئې ډکه کړې وي. دغه ما نا داچې اروپا او افریقا وچې هم پرځان او میان دوه خیاره سوي وي.

له مځکي ځخه د وږمي دبېلېدني عامل به ښایي هغه لکۍ لرونکۍ ستورئ ؤ، چې د ځلور زرو او شپږو زرو ۴۰۰۰ـ۶۰۰۰) یا ځلویښت زرو او شپېتو زرو کلونو په ترځ کښې به دمځکي په نژدو کښې تېرېدئ.

بل دا چې داسي فکر کوم چې دغه لکۍ والا ستورئ ځلور پلاوي دمځکي په نژدوکښې تېر سوئ دئ. ځکه ئې نو مځکه داسي گرځولې ده چې اروپا ئې

شمالي قطب ګرخولې وه. اروپا ئې څلور پلاوي شمالي قطب ګرځولې وي، په دغه اوونښتون کښې ئې شمالي افریقا او سوهېل لوېدیځه اسیا؛ لکه: عربستان، ایران او څرمه هیوادونه ئې داوسنۍ اروپا غوندي ځنګل زار ګرځولې وه. اوس منځنۍ افریقا هم ځنګل زار ده.

په دغو ځنګل زار سیمو کښې به لوی حیوانات، لکه: ډاینسور او مامت پیلان او ډېر نور ژوي هم خورا په پېخر سره اوسېدلي وله، چي اوسني تېل او پیترول ئې د بدن پاتندویه غوړي دي.

هغه لکۍ ولا ستورئ، چي د مځکي وقطب ته ئې اوو ښتون ورکړئ ؤ، همدغه ستورئ به لویه وچه، دشمالي او سوهیلۍ امریکا له ځایه څخه ورسره نوړلې وه، ددغي وچي له سره اغښل کېدني څخه او دموا له ګرځېدني څخه سپوږمۍ یا ووږمه جوړه سوې ده، کله چي د شمالي او سوهېلي امریکا له ځای څخه تر مځنۍ اروپا وچه بېله سوې وه، په ځای کښې ئې تشیا پیدا سوې وه، ودغي تشي ته داروپا او افریقا نیمی کړه سوي برخي و هغي تشیا ته ورښویدلي دي، هغه تر مخه وچه ئې لکۍ والا ستوري نوړولې او ورکش کړې وه، په فضاء کښې داجرامو حرکت د اصتحکاک یا د هوا د تماس له اسیته څخه ګردې، مدور شکل اخلي.

د دې له پاره څه شواهد سته چي شمالي امریکا له اروپا څخه بېله سوې ده او سوهیلي امریکا له افیریقا څخه بېله سوې ده، تر مخه یا دوه نه وسوه چي هورې په امریکا کښي د ډاینسور او مامت پیل هډونه هم په امریکا او اروپاکښې پیدا سوي دي، په منځنۍ امریکا کښي بیزوګاني سته چي د افریقا له بیزوګانو سره ټرواو لري. دغه شواهد پردې باندي دلالت کوي چي امریکا دي له اروپا او افریقا څخه هغه زمان بېلي سوي وي، چي حیوانات به یوازي پیدا سوي ول، بل لا ئې تردېرد انده پوري تکامل لاهم کړی ؤ، خو بیزوګاني د بشریت و مرحلې ته لارسېدلي نه وې. د دغه زمان ټاکنه به لرغون پوهانو کړې وي.

یو بل واقعیت داسي دئ یا داسي ښووي، چي شمالي امریکا او سوهیلي امریکا له اروپا او افریقا څخه بېلېدنه او ښوېدنه آني نه وه، بل لا سوکه ـ سوک، تدریجي وه، ځکه هغه بیزوګاني چي په منځنۍ امریکا کښي موندل سوي دي پر تدریجي بېلېدني باندي ئې دلالت کوي. که آني او په سرعت سره وای دغه حیوانات په ژوندي پاته سوي نه وای. دا چي ډاینسور او مامت پیلان په بېلتانه کښي مړه سوي یا که وژل سوي دي، نه پوهېږم.

یو بل واقیعت داسي دئ چي د سپوږمۍ پر مخ باندي یولوی خړ ټپلۍ لیدل کیږي. دغه ټپلۍ ئې دلالت پر دې باندي کوي چي یو زمان د سپوږمۍ پرمخ باندي یوه لویه بحیره وه. دغه ئې پر ووږمې باندي د او بو ستوالي یا موجودیت ښووي. دا چي دغه بحیره یو زمان وه او اوس نسته، دلالت پرداسي واقعیت باندي کوي چي په ابندا کښي سپوږمۍ و مځکي ته ورنژدې وه او هم ئې دغسي هوا الرله. پر سپوږمۍ باندي دغه دبحیرې موجودیت او په امریکاوو کښي د ژوو ستوالي دلالت پر دې باندي کوي، چي نو سپوږمۍ له مځکي څخه دیوې چاودني په وسیله سره بېله سوې نه ده. ای په مځکه ګښي چي چاودنه سوې نه ده چي سپوږمۍ ئې ایسته غورځولې وي. نو بېلېدنه ئې آدامه او

تـدریجي وه. پـه منځنـی امریکـا کښـې د بیزوګـانو موجودیت ئې هم پر سوکه ښلتانه باندي دلالت کوي.

پر سپوږمی باندي بحیره پر دې باندي دلالت کوي. چي یو زمان سپوږمی و مځکي ته ور نژدې وه او دا چي بحیره ئې وچه سوې ده، داسي ښووي چي سپوږمی وروسته له مځکي څخه لیري سوې ده، ځکه ئې نو بحیره وچه سوي ده، داچي یوه لکۍ لرونکي ستوري سپوږمی له مځکي څخه نوړولې او بېله کړې وه، کلـه چـي اوز کلونـه وروسـته دغـه لکـۍ لرونکـۍ سـتوری بلـه پـلا ومځکـي تـه نـژدې تېـر سـوئ دئ، سپوږمی ئې لا نوره هم له مځکي څخه لیري کړې، ده په دغه دوهمه پلا یا بله پلا لیري والي سره ئې له مځکې څخه هوا اووښتې او بحیره ئې وچه سوې ده. ځکه چي نور به د مځکي غوندي بارانونه پر اورېدل نه ول اوهم به ئې پر مخ باندي د نمر تودوخې ډېره سؤې وه.

دغه لکۍ وال ستوریٔ چي د څلور زرو او شپږو زرو ۴۰۰۰-۶۰۰۰) یا څلویښت زرو او شپېتو زرو کلونو په ترڅ کښي د مځکي په نژدو کښي تېرېدئ، پر خپله مځکه ئې هم اړولې وه. څلور پلاوي ئې اروپا قطب کړې وه او عربستان او ایران یا سوهېلي ختیځه اسیا ئې داسي ګرځولې وه لکه اروپا چي لوی ګن ځنګلونه او ډېرلوی حیوانات ئې لرل. دغه لکۍ وال ستوري په بله پلا تېرېدني سره مځکه و اوسني قطب ته وراړولې ده، چي پر مځکي باندي ئې لوی طوفان جوړ کړئ ؤ. د دغه طوفان په ترڅ کښي ځنګلونه او ژوي (حیوانات) تر لوتو او خاورو لاندي سوي ول، له و نو څخه ئې د ډبري سکاره جور سوي دي او دحیواناتو له غوړیو څخه ئې تېل (پترول petrol) جوړ سوي دي.

دغه لکۍ والا ستوریٔ به ګوندي هغه ستوریٔ ؤ، چي په اوز پورتنیو کلنو کښي مشتري ورکش کړئ ؤ. دغه لکۍ وال ستوریٔ درې ټوټې سوئ ؤ، لومړی لویه ټوټه چي ئې په مشتري کښي موښتې وه زموږ د مځکي په اندازه خوږ سکه براس ځني پورته سوئ ؤ، ګوندي دغه په هغه ستوریٔ ؤ چي دمځکې وموقعت (position) تـه ئـې او وښـتون ورګـاوء چـي شـمالي قطب ئې اروپا نه او بیا بیرته د اوسني موقعت ته وراړ ولئ دئ.

## د حضرت عمر رضي الله عدل

عطاء رحمه الله وایي حضرت عمر رضي الله عنه به هر کال د حج پر وخت د ټولو سیمو والیان راوغوښتل او بیا به ئې خلکو تـه وینـا وکـړه او داسـي بـه ئـې وویـل: ای خلکو! دغه والیان ماتاسو ته د دې له پاره نه دي درلیږلي چي ستاسو ځرمني و باسي یـا در څخـه مځکـي واخلـي یـا مـو سپکاوی وکـړي. بلکـي دوی مـا یـوازي د دې له پاره درلېږلي چي تاسو پر یو بل باندي له تېري کولو څخه وژغوري او د غنیمت مالونه در وویشي: نو که څوک د دوی پـه هکلـه څـه خبـره لـري ودي در ېږي.

جان محمد مهربان

# د حقارت عُقده

## Feeling Depreciation/ Inferiority Complex



د حقارت عُقده څه شي ده؟ ایا هر انسان د حقارت عُقده لري؟ د حقارت عُقده په انسانانو کې له کومه خایه، ولي او له څه وخته پیدا کیږي؟ایا د حقارت عُقده ګټوره هم ده؟ د حقارت دعُقدې عوامل څه شي دي؟ او دحقارت له عُقدې څخه خانونه څنګه ژغورلای سو؟ دغه لیکنه پورته پوښتنو ته جوابونه وایي.

د حقارت عُقده د عواطفو له جملې څخه یوه عاطفه ده چي هرانسان ئې لري او په ورځني ژوند کي ئې تجربه کوي. یا: د حقارت عُقده یوه انګېزه ده. دغه انګېزه د انسانانو په ژوند د کامیابي او ناکامي سبب کیږي. د حقارت عُقده وه چي ځیني انسانان ئې تر سپوږمۍ پوري ورسول او څوک ئې بیا دونده ګمراه کړل چي د پیغمبرۍ و د خدایي دعوې ئې وکړې او یا ئې په میلیونو انسانان قتل عام کړل. د حقارت احساس(feeling inferior) دوه اړخه لري، یو اړخ ئې د انسان له نیکمرغۍ او بل اړخ ئې له تباهۍ سره تړلی دئ. دغه احساس نه بد دئ او نه ښه دئ، کېدای سي د یو چا د کامیابۍ او د بل چا د ناکامۍ سبب سي. که انسان په ورځني ژوند کي له ناکامیو سره مخ سي او غوښتنو ته ئې پاملرنه ونه سي، له بد څخه به و بد تر ته ولاړ سي. په دغه وخت کي نو د حقارت حس دحقارت په عُقده اوړي. دلته نو انسان هم د ځان او هم د ټولني په تاوان تمامیږي. په دغسي حالت کي انسان ته د ځان ښودني، ریاکارۍ، د نورو د تخریبولو، ځان تر نورو لوړ ګڼلو، د بل چا د شخصیت ترورولو. په شرابو اخته کېدلو او د ځان وژلو فکر ور پیدا کیږي.

زه د حقارت دعُقدې پر منفي اړخونه رڼغېدلی یم. د بدبختۍ معنیوی چي هر وخت وکړو خوشبختي په خپله راته راځي. په ځینو ځایونو کي مي د خپل ځان او د خپلي کورنۍ په اړه مثالونه څکه ورکړي دي چي هر انسان په شعوري او غیري شعوري توګه تر بل هر چا او هر شي خپل ځان او خپلي کورنۍ ته متوجه وي.

خپل ځان ته په سپک نظر کتل، ځان ته لږ ارزښت ورکول، یا د خپل ځان په اړه شک لرل چي کارونه د ټاکل سوو معیارونه سره سم نه سم تکمیلولای. دغسي احساس ته د حقارت عُقده ویل

کیږي. د حقارت عُقده د کمترۍ له احساس سره فرق لري. د کمترۍ احساس هغه حالت دئ، چې یو څوک پر دې عقیده ولري چې د یو کار د اجرا کولو لپاره په فزیکي، دماغي، ټولنیز او رواني لحاظ نیمګړی دئ. د اروپوهنې په عصري ادبیاتو کې د حقارت عُقدې ته د خاني حُرمت پټ کمښت lack of covert self esteem وايي.

د اروپوه الفرید اډلر په نظر: «هر څوک د حقارت عُقده لري. دغه عُقده مریضي نه ده؛ د ژوند یوه عادي انګیزه ده. انګېزه دانسان په وجود کې هر هغه داخلي او خارجي شی دئ چې په یو چا یا په یوه شي کې فعالیت راژوندي کوي.» د حقارت عُقده هغه مهال داندېښنې ور سي کله چې یو څوک فکر وکړي چې ګرسره د یو کار د اجرا کولو ورتیا پکښې نه سته. د مکتب په دوره کې زما ریاضي نه زده کېده. په هغه همصنفي به مې ډېر قصد کېدی چې په ریاضي کې به تکړه وو، خط یې ښایسته وو او ښه رسمونه یې کښلای سوای. په اووم صنف کې مې له انګلیسي او په نهم صنف کې مې له ریاضي څخه ژړلي دي څکه چې یو خو مې نه زده کېدل بل مې داسي فکر کاوه چې زما په ککرۍ کې به خدای د ریاضي، انګلیسي، رسم او ښایسته خط ماغزه ځای پر ځای کړي نه وي. د کوچنیوالي فکر دئ نو! اوسني معلمان او د پوهنتون استادان باید نوي نسل ته توجه وکړي.

مخکي مي وویل چې د حقارت عُقده مثبت اړخونه هم لري. که په مکتب یا دفتر کې ستاسو یو ملګری په درسونو یا د دفتر په رسمي کارونو کې تر تاسو مخته وي، تاسو کوښښ کوئ چې ځان اصلاح کړئ. خپل ظرفیت لوړ کړئ او ځان له هغه سره سیال کړئ. مګر که دغه عُقده افراطي حالت ته ورسېږي، تر ګټې ئې تاوان ډېر دئ چې لاندي پر ړغېدلی یم!

د حقارت عُقده پر ابتدایي او ثانوي ډولونو وېشل کیږي.

د حقارت ابتدایي عُقده په کوچنیوالي کې وده کوي. کله چې کوچنی پر بل چا متکي پاته سي، یا برعکس، څوک ورسره کومک ونه کړي او یا کوم فزیکي عیب ولري، دغه کس د حقارت په عُقده اخته کیږي څکه چې ده/ ددې ملګري یو مشخص کار کولای سي مګر دی /دا ئې نه سي کولای.

پروسږ کال په دوبۍ کې زه د خپلي کورنۍ سره قرغې ته ولاړم. هورې مي له لونو سره په ډېرو د اوبو پر سر چکۍ ایستلې. په ډېرو د اوبو پر سر چکۍ ایستل تمرین غواړي. دغه تمرین ما په کوچنیوالي کې زده کړی وو. زما لونو هم کوښښ وکړ چې د اوبو پر سطحه په ډېرو چکۍ وباسي، خو نه ئې سوای کولای. زه یو ګړی ورسته څنې راغلم، تر یوې وني لاندي کښېنستم. زما لور د اوبو پر غاړه په چرت کې تللې، خوابدې او مایوسه ولاړه ده. کله چې مي ورته پام سو، ورغلم او ورته ومي ویل چې راسه څټکي وخورو، مرې اوښکي ئې له سترګو څخه راتوی سوې او په ګېله من اواز ئې راته وویل: «ته په ډېرو پر اوبو چکۍ ایستلای سې، زه ئې ولي نه سم کولای؟» ګورئ! ښه خو مو پام دئ چې ماشوم پر څونده بې ارزښته فعالیت مایوسه کیږي. مندي، پلرونه، ملایان او معلمان باید خپلو اولادونو او شاګردانو ته توجه وکړي. پر یو ډېر عادي فعالیت ورتیا نه لرل، کوچنی د حقارت په عُقده اخته کوي. ما چې یو وخت له انګلیسي څخه ژړل.– مبالغه دي نه وي– نن خدای پکښې دونده مهارت راکړی دئ

چي ددغي ليکني تقريباً ټول خام مواد مي له انګلېسي څخه راټول کړي دي. دلته تاکيد زما پر ورټيا نه بلکي پر دې دئ، چي انسان د تغير وړ دئ څو که سمه توجه ورته وسي.

د حقارت ثانوي عُقده –تر کوچنيوالي وروسته– په ځوانۍ کي هغه مهال را پيل سي کله چي يو ځوان ونه توانېږي چي خپلو اهدافو ته ورسېږي. د حقارت د ثانوي عُقدې پر مهال، هغه ابتدايه عُقده هم پسي فعاله سي ځکه چي ځوان ته د کوچنيوالي دبې وزلۍ د زمانې خبري/خاطرې ور په ياد سي. کله چي د مکتب بې واسطې اول نومره په کانکور کي ناکامه او شلم نومره انجينري يا طب ته کامياب سي، نو طبعاً ځينو انسانانو ته به ځان يو څه سپک ښکاري.

دحقارت د عُقدې عوامل: د حقارت عُقده ډېر عوامل لري چي يو څو يې لاندي تشريح کړي دي:

الف: د تفوق/ لوړوالي احساس: ارپواهان وايي چي دانسان په بدن کي د لوړوالي او برتري حس سته چي له کوچنيوالي څخه بيا تر پاخه سنه پوري ژوندی وي. دغه حس د حقارت دعُقدې يوعامل دئ. يو ماشوم تر کور دباندي په ټولنه کي له ډېرو خنډونو سره مخ کيږي. هغه څه چي ماشوم غواړي، ټولنه په هغه کي ورسره همکاري نه کوي. ماشوم د لوبو ميدان ته ځي، هلته ځوانان فوټبال کوي. د ماشوم زړه غواړي چي په فوټبال ور ګډ سي خو ځوانان اجازه نه ورکوي. که څه هم اجازه نه ورکول د ماشوم په ګټه ده ځکه چي تر پښو لاندي کيږي خو دلته ماشوم د غټانو په مقابل کي ځان کمزوری احساسوي، ماته خوري او د حقارت په عُقده اخته کيږي.

ب: د چاپيريال تاثيرات: له چاپيريال څخه هدف کور، مکتب، مدرسه، کلي او ټولنه ده. کله چي مور و پلار د ګاونډيانو يا خپلوانو اولادونه تر خپلو اولادونه لايق، چالاک او بيداره وبولي، يا له خپلو اولادونو سره توند او سخت چلند وکړي يا په مکتب/مدرسه کي ئې ملا او معلم ووهي او يا ئې د همصنفيانو مخ ته توهين کړي، يا په ټولنه کي مشران د ماشومانو توهين وکړي، په دغسي ماشومانو کي د حقارت عُقده انکشاف کوي ځکه چي دوی په ټولنه او دهمزولو په منځ کي ځانونه پاته او حقير ګڼي.

ج: جسمي معلوليتونه: د ارابوه آډلر په عقيده، دحقارت عُقده په انسان کي په درو شکلونو رامنځ ته کيږي چي يو له دغو څخه ئې معيوبيت او معلوليت دئ. د حقارت عُقده د وجود د يوه خاص غړي د نه لرو په وجه رامنځ کيږي ځکه هر څوک –که ماشوم وي او که ځوان وي– چي د وجود يو غړی ئې نه وي، د کمتری احساس کوي. دغه احساس وروسته د حقارت په عُقده اوړي. يوار خو ماشوم په چاپيريال کي تهديدېږي او بل وار بيا په ټولنه کي ورته د ړوند، پک، چپک، ګوډ، شل، ليوني او داسي نوري کلمې کارېږي. ماشومانو، ځوانانو، سپين ږيرو او سپين سرو ته غير عادي او غير مناسب صفات کارول په هغوی کي د حقارت عُقده رامنځ ته کوي. دغه عقده هم ددوی او هم دټولني په تاوان ده. د ټولني د يوه پوه اوسم انسان په صفت، هر افغان او مسلمان بايد ددغسي الفاظ د يو بل ورور/ خور لپاره کار نه کړي. حديث شريف هم وايي چي ښه مسلمان هغه دئ چي يو بل څوک ئې د ژبي او لاس له شره په امن وي.

د: ځان هېرول: کېدای سي د حقارت عُقده له خارجي چاپیریال سره اړیکه ونه لري؛ خپله د انسان له داخلي دنیا څخه سرچینه واخلي. ځان هېرول چي د خدای هېرولو اساس جوړوي- د حقارت دعُقدې يو اساسي عامل دئ. کله چي انسان ځان هېر کړي، غافل او پست پاته سي، نو د حقارت په عُقده اخته کيږي. په اسلام کي د انسان د نېکمرغۍ دوه سببونه سته: يو، د خدای یاد او بل د جزا د ورځي یاد. د اسلام هدف دلته دا دئ چي انسانان دي ځان نه هېروي. هر وخت چي له سري څخه ځان هېر سو، نو له هغه څخه خدای هم هېرېږي. خود شناسي بنیاد خدا شناسي است! کله چي له انسان څخه خدای هېر سي، هغه د حیوانیت مرتبې ته رسيږي. اروا پوهنه وايي چي د انسان دپاره سخته ده چي بېله عقيدې دي ژوند وکړي! همدا دلیل دئ چي د دنیا خلک د ځان د ارامېدلو له پاره د اسمان، د لمر، ستورو او سپوږمۍ او څوک حتی د حیوانانو عبادت کوي.

د نژدې خپلوانو مړینه او يو وزريتوب: د مور و پلار، د مېړه يا مايني، د لور يا زوی يا د يو بل نژدې دوست مړينه د حقارت دعُقدې يو بل عامل دئ. څېړنو دغه خبره په هغو کورنيو کي په ثبوت رسولې ده چي د کورنۍ نژدې غړي ئې له لاسه ورکړي وي. کله چي اولادونه خپل ځانونه بې پلاره او بې موره ويني او يا مور و پلار د بل چا سره لور/ زوی ويني، هغوی د حقارت احساس کوي چي دوخت په تېرېدو سره د حقارت په عُقده پسي اوړي. کله چي د مور و پلار اولاد نه وي او د اولادونو بيا مور و پلار مړه سوي وي، دغه ډول خلک په يوازيتوب اخته کيږي. مالي او مادي اړتياوي ئې نه پوره کيږي، له غريبۍ او فقر سره لاس و گريوان کيږي، په دې کارونو باندي شرمېږي خو بله چاره نه لري.

دا په خپل وار د حقارت د عُقدې عوامل دي. حضرت علي رضی الله تعالی عنه وایي « الفَقْرُ اَلْمَوتُ الاَكبَر» هغو ماشومانو چي په کوچنيوالي کي په سختو مالي شرايطو کي ژوند کړی وي، په خپل باطن کي د پاته والي او کمزروی احساس کوي، دغه احساس له دوی سره د عمر تر پايه پاته کيږي.

هـ: گناه: گناه د حقارت د عُقدې يو بل عامل دئ. کله چي انسان د جرم مرتکب سي، وروسته که قانون ورباندي تطبيق هم سي خو بيا هم دوجدان په محکمه کي پسي محاکمه وي. دغه حالت هغه مهال سري سخت خوروي کله چي جرم وکړي خو له سزا څخه په يو چم نه په يو چم وتښتي. څنگه چي انسان په تغير کي دئ نو داسي وخت راځي چي انسان په خپلو تېرو کړنو سخت شرمېږي، په نتيجه کي په رواني فشار او شکنجو پسي اخته کيږي. خپل ځان ورته سپک او بې ارزښته معلومېږي. انسان کوښښ کوي چي خپله گناه پټه وساتي او هېره ئې کړي مگر هيرول تر يادولو سخت کار دئ او بل داچي له خپله ځانه به سري څه پټ کړي په خاصه توگه بد او منفي کار خو دچا نه هېرېږي او نه ئې پټولای سي. گناه د سړي شخصيت خرابوي، ازادي او غرور ئې ورڅخه اخلي. کله چي د سړي شخصيت صدمه ويني او ازادي ئې له منځه ولاړه سي، دا بيا په خپل وار سره نور منفي تاثيرات لري. منفي تاثيرات ئې آن تر ځان وژني پوري رسېدلای سي. د حقارت عُقده ډېر عوامل لري، د ټولو يادول شايد د لوستوونکو حوصله ورتنگه او ليکنه لا پسي اوږده کړي. پر له پسې

مایوسه کېدل، په کارونو کې ناکامېدل، هر وخت له انتقاد سره مخ کېدل، کمزوری ټولنيز اقتصادي حالت، د مور و پلار او د معلم له توقعاتو سره سم کار نه اجرا کول، تر ملګرو شاته پاته کېدل، ګناه کول، او داسي نور د حقارت دعُقدې عوامل دي.

په کوچنيوالي کي هغه کوچنيان د حقارت په عُقده اخته کيږي چي يا ئې کورنۍ توجه نه ورته کوي او يا تر اندازې ډېر ناز ورکوي. که ماشوم ته توجه نه کيږي، ځان بې ارزښته ګڼي او که په هر کار کي يو بل څوک کومک ورسره کوي. بيا ماشوم پر يو چا متکي پاته کيږي او له دغه عادت سره عټېږي. کله چي ئې پلار، مور يا د کورنۍ بل غړی ورسره نه وي، عقدمن احساس کوي. کله چي ستاسو ماشوم يوې غونډۍ ته له کښتي څخه پر لوړ خېژي، د شاته راښويدلو بېره ئې په زړه کي وي، نو پلار ته د کومک رغ ور وکړي. ددې پر ځای چي تاسو د کومک لاس ور اوږد کړئ، جرئت ورکړئ چي خپله راپورته سي. ماشوم پر هغه کار ډېر خونداخلي چي خپله ئې عملي کړي خو ځرنګه چي پر ځان باوري نه وي، نو له بل څخه مرسته غواړي.

د حقارت د عُقدې راڅرګندېدل: د کوچنيوالي له دورې څخه وروسته، دحقارت عُقده د ژوند په هره مرحله کي راڅرګندېدای سي. د ژوند دغه ټولي مرحلې د بلوغ او د زوړوالي پر مرحلو وېشل کيږي:

اول د بلوغ مرحله: د بلوغ مرحله د انسان په ژوند کي مهم رول لري. د بلوغ د مرحلې په اړه په ارواپوهنه کي ډېر څه ليکل سوي دي ځکه چي په دغه دوران کي انسان په فزيولوژيکي، فزيکي او رواني لحاظ تغير کوي؛ له مختلفو جنجالونو سره مخ کيږي. دغه جنجالونه هم پر دوو برخو وېشل سوي دي: يو، تازه

خوانانو ته د ښخوا ترخې خاطرې ورپه يادېږي چي د ځورول سبب ئې ګرځي. دوه، نوي ځوانان د راتلوونکي په اړه له اضطراب سره مخ وي، يعني پر خپلي راتلوونکي ډاډمن نه وي. د ماشومتوب تر دورې وروسته، نوی ځوان غواړي چي د خپل ماشومتوب د کمزورۍ نقطې جبران او خلګو ته ځان قوي وښئي يا يو بل توجه جلبوونکي سلوک اجرا کړي. ارواپوه آډلر وايي چي د کوچنېوالي په دوره کي د ماشوم د حقارت عُقده يو مثلث غونډي شکل لري.

۱ـ د نه ور تيا احساس.

۲ـ د غټانو په مقايسه د کمزوری احساس.

۳ـ پر مشرانو باندي متکيتوب احساس.

د ځوانانو دپاره د بلوغ مرحله د پرواز مرحله ده. الوتکه چي پرواز کوي، څو دقيقې کښته و پورته کيږي چي ځان عيار کړي. کله چي را کښته کيږي، بيا ئې جټکې شروع سي. انسان هم په کوچنيوالي او هم په پوخوالي کي همداسي وي. د ځوانۍ په مرحله کي ځوانان غواړي چي يوازي وګرځي او ځان پېاوړی احساس کړي، مګر دلته بيا د ځوانانو د غوښتنو او نويو صلاحيتونو ترمنځ توپير ددې سبب کيږي چي ځوانان په ژوند کي غير عادي سلوک وکړي نو د بلوغ مرحله، يو له هغو مرحلو څخه ده چي ځوانان پکښې د حقارت احساس کوي.

دوهم: دپاخه سن مرحله: سپين ږيري او سپين سري خپله ورتيا د وخت په تېريدو سره له لاسه ورکوي. ځانونه کمزوري احساسوي. نو کوښښ کوي چي د هري ممکني طريقې په وسيله قدرت تر لاسه

کړي څکه چې د نن سپین ږیري د پرون ځوانان ول. پرون ئې سترګو ښه کار کاوه، نظر ئې تېز وو، اندامونه ئې پیاوړي ول، مګر نن هرڅه برعکس سوي دي. تر پرونه ئې د نورو ملاتړ کاوه خو نن لکه ماشومان د نورو کومک ته اړتیا لري. دغه حالت د سپین ږیرو او سپین سرو د حقارت عُقده پیاوړې کوي څکه نو په افغانستان کي د مسجد ملا او د سیاست د میدان لوبغاړي چې هرڅونده زاړه هم سي، پر بل چا تن نه ورکوي. د مسجد ملا امامت د خدای په روی نه پرېږدي او دولتي مامور د دولت چوکۍ ټینګه په ځان پوري تړلې وي. زوړ ملا ته نوي ملایان ناپوه ښکاري او ددولت پخواني مامور بیا ځوان مامورینو ته کمپیوټري مامورین وایي. ټول مامورین او ملایان داسي نه دي مګر دغه خبري خو واقیعت هم دي.

د حقارت عقده د نورو لارو هم راځرګندېږي. د حقارت په عُقده اخته کسان ځینو کارونو ته لاس ور اچوي او غیر عادي حرکات کوي. د ثروت ډېر والی کېدای سي ددې باعث سي چې یو څوک دي د پخوا غوندي د خپلو ملګرو احترام ونه کړي. د پیسو لرل ځینو خلګو ته داسي احساس ورکوي چې ترهغه چا ښه دي چې پیسې نه لري. پیسې و سړي ته د تفوق احساس ورکوي او مخکي مو وویل چې پر نورو د لوړوالی احساس خپله د حقارت یوه عُقده ده. که مو پام کړی وي داسي خلګو ته به متوجه سوي یاست چې تازه پیسې ئې پیدا کړي وي نو په تګ، خبرو، ناسته و ولاړه کي ئې هم تغیر راغلی وي. د حقارت په عُقده اخته سوي کسان د پیسو په وسیله د نورو خلګو په چارو کي لاسوهَنه کوي او په دغه طریقه خپلي عُقدې سَړوي. یا ځیني کسان چي کله سپین ږیري سي، د خلګو د توجه د را اړولو له پاره ډېري جالبي مګر غیر واقعي او خیالي کیسې کوي. دغو کیسو ته خپل شخصي مشاهدې بنسټ ټاکي او ځان پکښې د قهرمان په توګه راپېژني. دغه ډله خلګ په تیر مهال پسي ارمان کوي، له حال زمانې څخه سر ټکوي او راتلوونکې په خطر کيویني. په دغه طریقه سره غواړي چې خپل کمزروي ټکي پټ کړي چې د خلګو توجه د ځان له پاره دوامداره وساتي. که ئې ځوانان ورسره ونه مني، بیا خطرناکه عکس العمل ښئي. عکس العمل ئې دا دئ چې انزوا ته پناه وړي، په نورو خلګو پسي غیبت او بهتان وایي، د مېړه او مایني ترمنځ طلاق ته زمینه برابروي، لور و مور، پلار و زوی په شر سره اچوي، د کور په دننه کي بې نظمي جوړوي او په کلي کي ځوانان د مشرانو او مشران دځوانانو په وړاندي پاروي.

دحقارت دعُقدې تاثیرات: کله چې د حقارت عُقده شدید حالت ته ورسیږي، انسان خپل ځان کم ارزښته ګڼي، د شاګردانو د زده کړي پروسه او فکر ور خرابوي، منفي فکر وده کوي، چي دا بیا په خپل وار سره د خلګو پر رسمي او ټولنیزو فعالیتونو او ژوند سخت منفي تاثیر لري.

دحل لاري او ځان ژغورنه: د حقارت عقده د غلط باور پراساس رامنځ ته کیږي. لومړی باید دغه باور اصلاح سي. هر سړي د خپل ځان په اړه یو تصویر لري او دغه تصویر که مثبت وي، که منفي وي. که ښه وي او که بد وي، که ښایسته وي او که بد رنګه وي، په دماغ کي تر ډېره وخته ثبتېږي. په ځینو مشخصو حالتو کي بیا د سړي سترګو ته جګ درېږي. په دغه وخت کي نو سړي داسي فکر کوي چې:

زه ټمبل یم، زه بدرنګه یم، زه چاغ یم، زه ګرسره بدبخته پیدا سوی یم، زما ځخه د هیڅا ښه نه راځي. او یا له تصویر ځخه برعکس مفهوم اخلي. زه تر هر چا مهم یم، دا کور په ما اباد دئ، زه ددې دفتر پیر یم. که زه نه وم دا دفتر به سقوط سي او....

زکام او ټوخی ساده ناجوړی دي مګر که مریض سمه دوا پر وخت ونه خوري، دغه ساده ناجوړی کولای سي چي د مریض حالت نور هم پسې بدتر کړي. د حقارت له عُقدې ځخه ځان او بل ژغورل اسانه کار دئ.

۱– په لومړي پړاو کي تاسو خپل غلط باور اصلاح کړئ.

۲– د خپل ځان سم تصویر واخلئ او سم ئې تعبیر کړئ.

۳– دحقارت دعقدې نورغټ عوامل پیدا کړئ او په لاندي مشورو عمل وکړئ:

اول: یوه کوچنۍ انتقادي تبصره کولای سي چي تاسو ځو ورځي پر له پسې داسي پرېشانه کړي چي له خپلو ځانونو ځخه مو کرکه وسي. دا ستونزه هغه مهال رامنځ ته کېږي چي تاسو ته د ځان په اړه د خلګو قضاوت مهم وي. که غواړئ چي د حقارت له عُقدې ځخه ځانونه وساتئ، د ځان په اړه د نورو خلګو قضاوت ته غوږ مه نیسئ. کله چي د ځان په اړه د خلګو قضاوت تر خپل فکر او واقیعت درته مهم سي، باره نو د کمترۍ احساس کوئ او د حقارت په عُقده پسي اخته کېږئ. ددې پر ځای چي د خلګو بې ځایه قضاوت ته وزن ورکړئ، ځان ته په درنه سترګه وګورئ. د ځان په اړه د نورو خلګو د قضاوت په کیسه کي مه کېږئ. کله چي فکر کوئ چي یو کار کولای سئ، د خلګو خبرو ته ډېره توجه مه کوئ. مخ ته ځئ!

دوهم: په دنیا کي له هیڅا سره ځان مه مقایسه کوئ که ځه هم دا د سړي په واک کي نه وي. مګر کله چي ځان له نورو ملګرو سره مقایسه کوئ، نو داسي فکر وکړئ چي تر دوی پاته نه یاست، بلکي تر هغو مخکي کېدای هم سئ خو ضد به نه کوئ! کله چي له ملګرو سره ځان مقایسه کوئ، تاسو د هغو ترټولو ښه صفت انتخابوئ او بیا داسي فکر کوئ چي دا صفت خو په تاسو کي نه سته، بس نو ځان درته بې ارزښته سي. ددې پر ځای چي د ملګرو پر ښه صفت مو غور وکړئ، خپل ښه خاصیتونه مو کشف کړئ. ځیني واقعي دوستان ستاسو په داسي صفتونه خبر وي چي تاسو په خبر نه یاست، له هغو ځخه په غیر مستقیم یا په یوه بله مناسبه طریقه همکاري وغواړئ.

دریېم: پر دې خبره باور ولرئ چي هیڅوک نیمګړی نه دئ او هر ځوک بیا پوره نه دئ. جانان مومن ډېره مطالعه کوي، نو په صنف کي اول نومره دئ مګر په ټولنه کي مشهور نه دئ ځکه چي ټولنیزو کارونو ته وخت نه لري. سمیع غیرتمل بیا پر فېسبوک او ټولنیزو رسنیو ډېر وخت تیروي، ژورنالیست دئ، فوټبالر دئ، مست یاغي شاعر دئ، نو مشهور هم دئ مګر په مکتب کي اول نومره نه دئ. صادق ریښتنی بیا په کلب کي شپږ ورځي سخت تمرین کوي، ښه صحت لري، د هیواد دننه او دباندي ئې په ېبخر مقابلې ګټلي دي، تجارانو سوغاتونه او پیسې هم په جایزه کی ورکړي دي. ولسمشر هم ورسره لیدلي دي، کار ئې جوړ دئ مګر په مکتب کي بیا اول نومره نه دئ خو په صحت تر غیرتمل او مومن جوړ دئ. جان محمد مهربان په کابل کي وظیفه لري او په عیني وخت کي بیاد پوهنتون استاد دئ، مګر کور، کلي او مور و پلار ور

ځخه پاته دي. هغه څه چي مهربان لري، غیرتمل ئې نه لري.کوم ویاړ چي مومن ته ورپه برخه دئ، ریښتني ورځخه محروم دئ. څونډه مقابلې چي ریښتني ګټلي دي، مهربان په هغه تعداد مقابلې د تلوېزون پر پرده لا لیدلي نه دي. د دې مثالونو نتیجه داده چي تاسو نه بشپړه یاست او نه نیمګړي.

ځلرم: نور خلګ تر خان لوړ مه ګڼئ: په اروا پوهنه کي د «مطیع/ منوونکي سلوک» « Submissive Behavior» اصطلاح سته. منوونکی سلوک هغه حالت ته ویل کیږي چي تاسو د بل چا تر تاثیر لاندي راسئ او دهغه/هغې امر ته سر ټیت کړئ ځکه چي:

۱ – تاسو فکر کوئ چي هغه کس تر تاسو لایق، با تجربه، پوه، ښایسته او تیز فکر دئ.

۲ – ګومان کوئ په څه چي هغه کس پوهیږي، تاسو نه په پوهیږئ.

۳ – تاسو باور لرئ چي ستاسو د دفتر مشر، یا د صنف اول نومره ته خدای تعالی فوق العاده استعداد ورکړی دئ.

۴) یا داسي نور بې اساسه باورونه او فکرونه دي چي ستاسو په ذهن کي در ګرځي.

د مشر خبره واورئ، له پوه سړي/ښځي ځخه زده کړه وکړئ، مګر داسي فکر مه کوئ، چي دوی نابغه ګان او تاسو لټان یاست. دې ته پام وکړئ چي دغو ماهرو کسانو څونده زده کړه کړې ده او په یو مسلک کي ئې څونده وخت تېر کړی دئ چي تر دغه ځایه رسېدلي دي. چي اوس تاسو ورځخه متاثیر سوي یاست! خپل ځان ته ووایاست چي که کوښښ وکړو، تر دوی هم مخ ته کیږو. ارسطو دا فلاتون شاګرد وو خو وروسته ئې د افلاتون نظریات ورد کړل.

پنځم: هیڅا ته په سپکه مه ګورئ: د تفوق حس د انسان په وجود کي خپله الله تعالی ځای پر ځای کړی دئ مګر ددې لپاره نه چي نورو ته په سپک نظر وګورو او په ځان مغروره سو. الله تعالی درته وایي چي:

وَما خَلَقْنا السَّمٰواتِ وَالأَرْضَ وَما بَينَهُما لاعِبِينَ. (سورة الدخان: آیت. ۳۸)

ژباړه: او موږ دا آسمانونه او زمکه او څه چي په دوی کي دي؛ د لوبو کوونکو په توګه نه دي پیدا کړي.

او په قران کریم کي یو بل ځای وایي:

أَفَحَسِبْتُمْ أَنَّما خَلَقْناكُمْ عَبَثاً. (سورة المؤمنون: آیت. ۱۱۵)

ژباړه: آیا داسي مو انګېرلي ده چي موږ عبث او بېهوده پیدا کړي.

همدغه د تفوق حس وو چي انسان فضاء ته ولاړئ، له اوسپني ئې کار واخیست، سمندرونه ئې په خپل کنترول کي راوستل او غرونه ئې سوري کړل، لاري ئې پکښي وایستلې! دا د تفوق د حس یو مثبت اړخ دئ. له بله اړخه د تفوق حس باید کنترول سي. که کنترول نه سي، په کورني، کلي او ټولنه کي د جنګ او فساد عامل ګرځي او عملاً ئې وینو چي جنګ او فساد په کورونو، ټولنو، نظامونو او نړۍ کي روان دئ.

شپږم، جوړ چاپیریال: اسلام او اروا پوهني دواړو د جوړ چاپیریال پر رامنځ ته کېدو ټینګار کړی دئ. له چاپیریال ځخه هدف کور، مکتب، مدرسه، پوهنتون، مسجد او داسي نور دي. مور و پلار، معلم او ملا زموږ د چاپیریال مدیران دي نو باید له کوچنیانو سره په مهارت چلند وکړي.د انسانیت لارښود حضرت محمد صلی الله علیه وسلم وایي چي لَعَنَ اللهُ وَالِدَينَ حَمَلَا وَلَدَهُما عَلی عُقُوقِهِما. جوړه ټولنه په جوړو انسانانو باندي جوړیږي. جوړ انسانان هغه مهال په ټولنه کي پیدا کیږي چي مور و پلار، معلم و ملا له ماشومانو سره سم چلند وکړي. زموږ په ټولنه کي معلم او ملا هم دمور و پلار مقام لري، نو باید پر کوچنیانو رحم او مهرباني وکړي. حدیث وایي: رَحِمَ اللهُ وَالِدَينِ اَعانا وَلَدَهُما عَلی بِرِّهِما.

په اسلام او اروپوهنه کې د ټولني او ټولنیز ژوند کولو په اړه پوره معلومات سته. که په هغو باندي عمل وسي، په ټولنه کې د حقارت عُقدې ته هیڅ زمینه نه پاتیږي.

اووم، شخصیت جوړول: په ټولنه کې انسانان یوډول نه دي. په خوی و خصلت، په اندام و رفتار، په فزیکي او رواني لحاظ یو له بله سره فرق لري. نه دیني اصول او نه د بشر په لاس جوړ سوي اصول چاته حق ورکوي چي خپل او د بل چا معنویت او شخصیت ته تاون ور ورسوي. په انسان کي ځیني غیر عادي صفتونهٔ ددې دلیل کېدای نه سي چي یو بل ځوک دي پسخند په ووهي او یا دې حقوق تر پښو لاندي کړي. تر اسلام یا تر بل هر دین مخکي او وروسته، لومړی باید له خپل وجدان سره محاسبه وکړو؛ له ځان ځخه وپوښتنو چي ایا زه ددې حق لرم چي یو بل ځوک توهین و تخریب کړم؟ ایا دا به ښه وي چي ځان ته په درونډ او بل ته په سپک نظر وګورم او که به دا ښه وي چي هم د ځان او هم دنورو احترام وکړم؟ په ټولنه کې له خلګو سره داسي چلند وکړئ لکه دخان په اړه چي ئې له نورو خلګو توقع لرئ. د حقارت دعُقدې تر ټولو ښه حل د ځان اصلاح ده. مخکي مي وویل چي ځان هېرول د خدای هېرول دي. ځان پېژندنه دخدای پېژندني اساس جوړوي.

اتم، توبه: ګناه د حقارت دعُقدې یو ځرګند عامل دئ چي مخکي پر وړغېدم. کله چي له انسان ځخه ګناه وسي د خدای له رحمت ځخه باید مایوسه نه سي. بلکي توبه دي وکاږي؛ خدای توبه قبلوونکی دئ. زموږ ددین یوه ښه ځانګړتیا داده چي توبه کښل او توبه قبلېدل پکښي سته. دا خبره نو دا معنی هم نه لري چي موږ به یوار ګناه کوو بیا به توبه کاږو او داسي به یو دایروي شکل ځني جوړو. د توبې په اړه په قران او اسلام کې ډېري خبري سته. دغه لیکنه به د توبې اړوند په ځو ایاتونو پای ته ورسوم:

إِنَّ اللهَ لا يَغْفِرُ أَنْ يُشْرَکَ بِهِ وَيَغْفِرُ ما دُونَ ذٰ لِکَ لِمَنْ يَشاءُ.(النساء،۴۸)

ژباړه: یقیناً چي الله شرک نه بخښي او له شرک پرته نور ځه هر هغه چا ته بخښي چي د ده خوښه وي.

وَهُوَ الَّذِي يَقْبَلُ التَّوْبَةَ عَنْ عِبادِهِ وَيَعْفُو عَنِ السَّيِّئاتِ. (الشوری،۲۵)

ژباړه: او دی همغه (ذات) دئ چي د خپلو بندګانو توبه قبلوي او له ګناهونو تېرېږي.

يا أَيها الَّذِينَ آمَنُوا تُوبُوا إِلى اللهِ تَوْبَةً نَصُوحاً. (التحریم،۸)

ژباړه: اې هغو چي ایمان ئې راوړی! د الله لوري ته په سوچه توبې سره ستانه سئ.

پای

قمبر چوک ـ کابل

۱۳۹۶ ـ قوس ـ ۱۹مه

داکتر عبدالروف رفیقي

# د ګوره زامن

## په افغانستان کې په لومړي، دوهم او درېیم افغان انګلیس جنګونو کې د وژل شوو انګرېزانو احوال

(دریمه برخه)

سر ویلیم هې میکناټن:
**Sir William Hay Maccnaghten**

سرویلیم هې میکناټن په ۱۷۹۳م کې زېږېدلی وو. دی په ژبو کې خورا تکړه وو، پخوانی قاضي او د برطانوي پوهانو څخه ګڼل کېدئ. څکه نو دی په ایسټ انډیا کمپنۍ کې یو انتظامي مامور وټاکل شو او له هغه پس په افغانستان کې د برطانیې سفیر جوړکړل شو.

ښه نیټو به ئي مدام د استعدادونو او صلاحیتونو ستاینه کول او بد نیټو خو ببخي میکناټن د برطانوي ګورنر جنرل د صلاح کار په توګه نامناسبه کس ګڼئ، ده به د هند وانسرای لارډ اکلینډ ته همېشه دا ویل چې دوست محمد خان د انګرېزانو دښمن دئ، د ده پر ځای دي شاه شجاع وټاکل شي، انګرېزانو شاه شجاع د کابل پر تخت کښېنولی وو. د لومړي انګلیس جنګ پیل وو، افغانانو د انګرېزانو پر خلاف دملي قیام پرېکړه کړې وه، دا ۲۳دسمبر ۱۸۴۱م وو. حالات داسي جوړشوي وه چې میکناټن ته د اکبرخان سره د خبرو په چپه (پرته) بله هیڅ لار نه وه پاته خو بیا هم ده د احتیاط لپاره حکم وکړ چې د چونۍ (چاونۍ) د باندي دي دوه رجمنټه فوځ تیار اوسي، د هغه پس (وروسته) دی د اکبرخان سره د ملاقات لپاره دباندي راوواتی دغه ملاقات د چونۍ څخه دتوپک دګولۍ تر ضد لاندي ساحې څخه دباندي وشو، په خبرو - خبرو کې اکبر خان سفیر تر ملا ونیوی او وده ته ئې پر آس د سپرېدو لپاره وویل. میکناټن انکار وکړ په دغه مه کوه ایله که کې تشې دوې درې خبرې سره وشوې. "از برائ خدا" د میکناټن د مزاحمت په نتیجه کې اکبر دی په توپنکچه وویشتی. دی لا ژوندی وو چې اکبرخان خپل یوه ملازم ته حکم ورکړې چې دی د جزائر په یوه لویه ګولۍ ووله؛

دکوم لکبله چې د ده ژوند ختم شو. د سفیر سره مله د ده د ساتندویه ډیلي ماموران و د ده د ژغورنې لپاره هیڅ کوښښ ونه کړ. د برطانوي فوځونو له خوا یوه ګولۍ هم نه شوه فائر او نه هم د چوني له لوري یو عسکر لا پر مخ راتېر شو. بیا اکبر د ده سر ور پرې کړ، د ده مړی ئې د کپتان ټریور د مړي سره په کشیدو تر ښاره پوري یو وړی. چیري چې ئې په ښار کي تر دو ورځو راوځړاوی. د هغه پس ئې په یوځاه کي واچاوی. د سفیر سر ئې خلم ته ورولېږی. د کوم دلاس ته راوړلو لپاره چې د میکناټن د مېرمني واړه هڅې بې فائدې شوې. خو موهن لال بیا د سفیر ګوتمې د چاځخه رانیول او دهغه مېرمني ته ئې ورولېږل. (افغانستان او موهن لال، ۲۲۵.مخ)

### کپتان ټریور:

داسړی هم د برطانوي نظامي قواو لوړ رتبه مامور وو او په فوځ کي کپتانۍ ته رسېدلی وو، دلومړي افغان انګلیس جګړې پر وخت کابل ته د خپلي وظیفي د پوره کولو لپاره راغلی وو. دده نور احوال را معلوم نه شوه فقط دومره یادونه ئې راغلي ده، کله چې وزیر اکبر خان په ۲۳دسمبر ۱۸۴۱م په کابل کي د برطانیې سفیر ویلیم میکناټن وواژه او سر ئې ور پرې کړئ، نو د ده مړی ئې د کپتان ټریور د مړي سره په کشېدو تر ښاره پوري یو وړئ؛ چیري چې ئې په ښار کي تر دوو ورځو راوځړوئ. د هغه پس ئې په یوځاه کي واچاوی. د سفیر سرئې خلم ته ورولېږئ. د کوم دلاس ته راوړلو لپاره چې د میکناټن د مېرمني واړه هڅې بې فائدې شوې. (افغانستان او موهن لال، ۲۲۵.مخ)

### لیفټینینټ سټرټ:

STURT

(۳۰جنوري ۱۸۴۲)

موهن لال و میکریګر ته خبر ورکړ چې اکبر برطانوي بندیان لغمان ته واستول او داچې لیفټینینټ سټرټ( STURT)ئې وژلی دئ او د هغه ښځه دُرانیانو بندي کړې ده. (افغانستان او موهن لال، ۲۲۶.مخ)

### چارلس سټوډرټ:

چارلس سټوډرټ (۱۸۰۶ – ۱۸۴۲) په ۱۸۲۳ کي په شاهي سټاف کور کي ملازمت پیل کړ. په ۱۸۳۴ کي دی کپتانۍ ته ورسېدئ، په ۱۸۳۵ کي دی د برطانوي سفیر د ملټري سیکرټر په توګه ایران ته واستول شو. ده د ایراني فوځونو سره ګډ په ۳۸ – ۱۸۳۷ کي د هرات په محاصره کي کردار اداکړ. په ۱۸۳۸ کي دی بخارا ته واستول شو تر څو د روسي بندیانو د خلاصون لپاره د امیر سره ترون وکړي. دی ئې پخپله بندي کړ. خو په ۱۸۳۹ کي ئې بېرته خوشي کړ. بېرته ئې په ۴۰ – ۱۸۳۹ کي ونیوی او په ۱۸۴۱ کي ئې یو وار بیا بندي کړي په ۱۷ جون ۱۸۴۲ ئې د آرتهر کنالي سره یوځای سر ځني پرې کړ (بکلینډ). (افغانستان او موهن لال، ۲۵۱.مخ)

### مېجر جنرال ویلیم الفنسټن:

Major General William Elphinstone

دی په ۱۷۸۲م کي زیږېدلی وو، دی سکاټش وو او د افغانستان د مشهور تاریخ لیکونکي (ماونټ سټیوارټ الفنسټن Elphinstone Mountstuart) زوکړه اکتوبر ۱۷۷۹م برطانیه، مړینه ۲۰ نومبر ۱۸۵۹م، An Account of the Kingdom of Kabul چاپ دوه ټوکه

۱۸۱۵م د کابل سلطنت بیان د دغه اثر پښتو ژباړه د پوهاند ډاکتر محمد حسن کاکړ او نصر الله سوسبمن (دوه ټوکه) چاپ کابل ۱۳۵۹ه ش) له نږدې قریبا نو څخه وو په ۵۸ کلنۍ کې په افغانستان کې د برطانوي فوځ کماندر انچیف ولګول شو، په دغه شپو کې دی لږ ناروغه هم وو برطانوي جنرال ناټ به دی یو نااهله جنرال باله، کله چې په جنوري ۱۸۴۲ کې چې د برطانوي فوځیانو قتل عام وشو، نو اکبرخان ډېر خلک پکې بندیان کړل، په دوی کې پنځه ډېرش افسران، یو پنځوس عسکر، دوه سوه رعیت، دلسو افسرانو ښځې، د دوو عسکرو ښځې او دوه ویشت ماشومان شامل وه[۱۰]، په دغه بندیانو کې دغه جنرال الفنسټن هم وو، چې په دغه جنګ کې بندي شوی وو.

دغه بندیان ئې یوه ورځ په کابل خورد کې ایسار کړه او په یوولسم جنوري ئې تازین ته ولېږل، په ۱۲ تاریخ ئې سیه بابا ته ولېږل، یو څه وخت پس ئې تګرې ته ولېږل. (تګرې د جلال آباد څخه پر دیرش میله واټن پروت دئ) ولي چې دا ځای خوندي نه وو ځکه ئې نو دوی د اکبر د خسر محمد شاه خان په قلعې، ته د باري آباد کلي ته بوتله، بندیانو دلته درې میاشتې تېرې کړې، له دې ځایه بندیان پر یوولسم اپریل را روان شوه، په ۱۹ اپریل تازین ته راورسېده، بیاله تازین څخه دوولس میله لیري د ګونده د کلي پر لور را روان شوه، دلته په ۲۳ اپریل ۱۸۴۲م الفنسټن ساه ورکړه. (وېارلي: ۱۰ ټوک .۱۵۱، ۱ د باچا بیرته راتګ د افغانستان دپاره جنګ ۱۲؛ افغانستان او موهن لال ۲۹۴)

سرهنري سیل:

سرهنري سیل په ۱۷۸۲م کې وزېږدئ، د کرنل سیل زوی وو، ده په ۱۷۹۵ کې په فوځ کې ملازمت پیل کړ، په ۱۷۹۸ په مدراس کې وو او ده په ۱۷۹۸ – ۱۷۹۹ کې د میسور په جنګ کې برخه واخیسته، په ۱۸۰۹ کې د تراونکو پر ضد په فوځ کې په کار راوړل شو، ده د ۱۸۱۰ د څخه تر ۱۸۱۳ پورې د ماریشیس په جنګ کې برخه واخیسته، ده ته په ۱۸۱۳ کې د مېجر پر چوکۍ ترفیع ورکړل شوه، د ۱۸۲۴ څخه تر ۱۸۲۶ پورې ده د برما په لومړي جنګ کې برخه واخیسته. د افغانستان په لومړي جنګ کې ده د لومړي ټولۍ د برګېډ قومانده پر غاړه درلوده، په ۱۸۴۵م کې ووژل شو. (بکلینډ). (افغانستان او موهن لال: ۱۶۰.مخ)

ډونلډ:

کله چې په ۲۹مارچ ۱۸۴۹م انګرېز په بنو کې له سکهانو په بشپړه توګه واک تر لاسه کړ او په بنو کې ئې خپل لومړی ډپټي کمشنر نکلسن وټاکی، نو پښتنو د دوی پر ضد مبارزه پیل کړه، په ۱۸۵۰م کې دو وزیرو پښتنو مجاهدېنو جان او سیلګي د خپل لښکر په ملتیا د بنو څخه اووه میله د قطب خواته په ګمبټۍ کې د انګرېزانو پر کمپ برید وکړ، په نتیجه کې ئې لوی انګرېز منصبدار ډونلډ وواژه. (وزیرستان: ۱۳۶، ۱۳۷مخونه)

مېجر رابرټ ریچرډ میچم:

بنګال ارتیلري

د وزیرستان محبت خان هاتي خېل وزیر (احمدزي وزیر)، زنګي خان ملک شاهي امانزي وزیر او د شیرنۍ د ملک آدم خان مداخېل زوی غلام

---

[۱۰] میسن ۳۳۵ مخ. د دوي د نوموا نورو تفصیلاتو دپاره په افغانستان کې د آئـر د بند د شپوروز نامچه JOURNAL OF IMPRISONMENT IN AFGHANISTAN ۴۳۳–۴۳۶ مخونه.

خان په ۵ نومبر ۱۸۵۹م د لتمبراو ډومیل تر منځه د چنغوسي الګډي په قبلیزه مورګه پر یوه فوځي ډله حمله وکړه د ډلي مشر میجر آر میچم د محبت خان او زنګي خان په لاسو ووژل شو او دوی دواړه له کرمي ولاړه د کابل خېلو وزیرو په سیمه کي میشته شوه انګرېزانو پر دوی ډېر فشار راواستی، چي محبت خان او زنګي خان و انګرېزانو ته په لاس ورکړي احمدزو وزیرو محبت خان په لاس ورکړی انګرېزانو هم هلته په دار راوځړوئ؛ چیري چي ده مېجر مېچم وژلی وو، زنګي خان ولاړی محسودو ته ئي پناه ورووړه محسودو پر جنګي خان خپل سرونه کښېښوول ملک جنګي خان او فقیر شېر علي خان د زنګي خان په ژغورلو کي شهیدان شوه خو د زنګي خان نوک لا انګرېز د دومره رعب او دبدبې سره لا نه ولیدئ. (وزیرستان: ۱۴۰،۱۴۵مخونه)

لیفټیننټ لوئیس:

د جنرل لمسډن په قومانده کي چي د پلسین پر فوځي کیمپ د پاخړي، خواجه خواص، قمر جان، باوردین او امیر ګل په مشري کي د پښتنو د دروو زروکسانولښکر د۲۲او۲۳اپریل ۱۸۶۰م په منځنۍ شپه چپاو کړی وو او په هغه کي ئي په سوونو سهکان او ډوګره عسکر وژلي وه، د دښمن د فوځ د مړو شمېره د نهو انګریزي افسرانو سره ۷۹۶ تنه ته ورسېده، خو عبدالحلیم اثر افغاني په دغه جنګ کي د انګریزي فوځ د مړو شمېره ۲۷۹۶ یاده کړې ده او ۸۵ پښتانه مجاهدین شهیدان شوي، په دغه وژل شووانګریزي افسرانو کي یوهم لیفټیننټ لوئیس وو. (وزیرستان: ۱۴۸؛ زمونږ مجاهدین: ۱۳۷)

لیفټیننټ بونډ:

د جنرل لمسډن په قومانده کي چي د پلسین پر فوځي کیمپ د پاخړي، خواجه خواص، قمر جان، باوردین او امیر ګل په مشري کي د پښتنو د دروو زروکسانولښکر د ۲۲ او ۲۳اپریل ۱۸۶۰م په منځنۍ شپه چپاو کړی وو او په هغه کي ئي په سوونو سهکان او ډوګره عسکر وژلي وه، د دښمن د فوځ د مړو شمېره د نهو انګریزي افسرانو سره ۷۹۶ تنه ته ورسېده، خو عبدالحلیم اثر افغاني په دغه جنګ کي د انګریزي فوځ د مړو شمېره ۲۷۹۶ یاده کړې ده او ۸۵ پښتانه مجاهدین شهیدان شوي، په دغه وژل شووانګریزي افیسرانو کي یوهم لیفټیننټ بونډ وو. (وزیرستان: ۱۴۸؛ زمونږ مجاهدین: ۱۳۷)

کپتان منجام:

د پلسین پر فوځي کیمپ د پاخړي، خواجه خواص، قمر جان، باوردین او امیر ګل په مشري کي د پښتنو د دروو زروکسانولښکر د۲۲او۲۳ اپریل ۱۸۶۰م په منځنۍ شپه چپاو کړی وو او په هغه کي ئي په سوونو سهکان او ډوګره عسکر وژلي وه، د دښمن د فوځ د مړو شمېره د نهو انګریزي افسرانو سره ۷۹۶ تنه ته ورسېده، خو عبدالحلیم اثر افغاني په دغه جنګ کي د انګریزي فوځ د مړو شمېره ۲۷۹۶یاده کړې، په دغه وژل شووانګریزي افسرانو کي یوهم کپتان منجام هم وو. (وزیرستان: ۱۴۸؛ زمونږ مجاهدین: ۱۳۷)

لیفټیننټ جنرل هنري ماري ډیورینډ:

هنري ماري ډېورینډ په برطانوي فوځ کي په رائل انجنیرنګ کي د لیفټیننټ جنرل تر رتبې رسېدلی

وو، دی هم د برطانوي استبداد دغځولو لپاره و پښتني خاوري ته رالېږل شوې وو، دلته په لومړۍ جنوري ۱۸۷۱م د فیل ځخه د راایله کېدو لکبله مړ شو او د ډېره اسماعیل خان په چوني کي د چرچ سره نژدې ښخ دئ.

یادونه: زموږ ځینو مورخینو (عبدالحمید ترین، په فقیر ایپي ۲۴ مخ، عارف محسود په وزیرستان کرم سي ګومل تک) د دغه لیفټیننټ جنرل هنري ماري ډېورینډ چي په لومړۍ جنوري ۱۸۷۱م د فیل ځخه د راایله کیدو لکبله مړ شو او د ډېره اسماعیل خان په چوني کي دچرچ سره نژدې ښخ دئ، د ده قبر ئې وسرمارټیمر ډیورینډ ته منسوب کړی دئ، کوم چي د افغانستان او برطانیې تر منځ د سرحد لیکه په ۱۸۹۳م کي کش کړې وه، حال دا چي د هغه ډیورینډ د مرګ ۲۳ کاله پس دغه ډیورینډ دا لیکه کش کړې وه.
(وزیرستان: ۲۱۲ مخ)

**مېجر هانري هولول برچ:**

Major H. H. Birch
Staff Corps
(PUNJAB) BENGAL N.I.



دی د لیفټیننټ کرنل ایم ډبلیو برچ کشری زوی وو، پلار ئې د برطانوي ځواک په ۴۱ رائل انفنټري وو، چي په هند کي دازادۍ په جنګ کي په ۱۸۵۷ کي ووژل شو.

دی په هند کي په ۲ ستمبر ۱۸۳۷ وزېږېدئ، د زده کړو لپاره په دغه کوشنیوالي برطانیې ته ولېږل شو، دیارلس کاله پس بیر ته هند ته راغلی، دلته په هند کي ئې تر ۱۸۵۷م پوري ملازمت وکړ، په دغه شپو کي له خپل پلار سره د هند په ستیاپور کي وو، چي د هند د آزادۍ جنګ وموښتی، دی د ځینو خپلوانو او اشنایانو سره لکنهو ته ولاړی او هلته ئې د لکنهو د ذیډنسي په دفاع او خوندینه کي غوره رول ولوباوه، په ۱۸۵۷،۵۸ کي د برطانیې په فیلډ فورس کي په عالم باغ کي وو او په ۱۸۵۸م کي د انګرېزانو سره دلکنهو په نیولو کي هم شامل وو، دخپلو دغه خدماتو لکبله و ده ته یو مډال او دوه ستوري ورکړل شوه، په ۱۸۶۰م کي د (هغه وخت په ۱۹ چي بیا په ۲۷ پنجاب انفنټري بدل شو) کي ومنل شو په ۱۸۶۶ کي د برګیډئیر جنرال ډوران سره د یوسفزی او په ۱۸۷۱، ۷۲ کي د برګیډئیر جنرال براؤن سره په لشي کي ورسره وو، د دغه خدماتو په ستاینه کي وده ته درېیم مډال ورکړل شو، په دغه دوران کي ده په خپل رجمنټ کي وخت پر وخت ترفیع هم تر لاسه کول، په ۱۸۷۵م کي د خپلي ټولۍ معاون کمانډ وټاکل شو، په ۱۸۷۷،۷۸ کي د ده و۲۷ پنجاب ته په ځواکي کمپائن کي د برخي اخیستلو زیرمه وشوه، دی د دغه برګیډ ستاپ کماندانټ و ټاکل شو او د دغه برګېډ قومانده وروسپارل شوه.

د۱۸۷۸م په مني کې د برګېډئير اپلاياړ سره د افغانستان په جنګ کې دبرطانوي ځواکونو د ځای ناست کمانډانټ درنه وظيفه وروسپارل شوه، په ۲۱ نوامبر۱۸۷۸م دی د علي مسجد په بريد کې هم شامل وواو د پنجاب ۲۷ نيټيو انفنټري ته ئې په فائر کولو سره دمخ په وړاندي تګ امر ورکړی وو، تر څو د افغاني دښمن قمربندونه ورمات کړي او پرمخ تګ وکړي او د۱۴ سکه ټولۍ مرستي ته ځانونه ورسوي په دغه وخت کي د ۱۴ سکه ټولۍ کپتان ميکلن ډېر بد لګېدلی وو او په ښخي نازک وخت کي برچ ورته راورسېدئ، چي نابيره د يوه غازي افغان ګولۍ هم د برچ تر سينه ووته او ځای پر ځای د دغه خونړي جنګ شومه شو.

معاون ليفټيننټ فيټز جيرالډ په ډېر همت سره خپل سر پر ورغوي کېښېښووی او د جنګ له منځه ئې د برچ مړی راوايستی چي بيا په ۲۴ نوامبر۱۸۷۸م خورا په درانه نظامي وياړ له برطانويانو له خوا په پېښور کي وخاورو ته وسپارل شو.

دده د رتبو نېټه ښود په دا ډول دئ:

برطانوي ځواک ته راتګ ـ ۴ اګست۱۸۵۸.

ليفټيننټ ـ ۲۶اپريل ۱۸۶۰.

کپتان ـ ۱۴اګست ۱۸۷۰.

مېجر ـ ۱۴اګست۱۸۷۸.

(The Afghan Campaigns of 1878- 1880 Vol.2 p17-18.)

**د انسان درې ملګري :**

**اول: هغه چي د روح تر اخستو ورسره وي.**

**دوهم: هغه چي تر قبره ورسره وي.**

**درېيم: هغه چي تر قيامته ورسره وي**

**د روح تر اخستو پوري ملګری مال دئ، تر قبره پوري ملګري د هغه خپلوان دي او تر قيامت پوري ورسره ملګری د هغه عمل دئ.**

**د الله جل جلاله د نعمتونه څه ګټه واخلئ:**

**د دنيا د حلالو او پاکو نعمتونو څخه پوره ګټه واخلئ؛ مګر اسارت ئې مه منئ، زړه مه ورپوري تړئ.**

**ښه وخورئ، ښه واغوندئ او ښه واوسېږئ، دولت هم وګټئ او له ځان سره ئې ولرئ؛ مګر زړه مه پر بايلئ. د هغه ستړوالي او نه ستوالی باید تاسو ته يو رازوي؛ که الله جل جلاله تاسو ته په رزق کي پراخي درکړي له ځنډ پرته د هغه نعمت په سينه پوري ونيسئ او که مو روزي تنګه سوه نو د الله جل جلاله ورکړه ئې وبولی او شکر ئې اداء کړئ.**

**د خلکو څه اميدونه وشکوئ:**

**ټول اميدونه مو يوازي په الله جل جلاله پوري وتړئ، خلک چي هرڅه لري د هغو څخه زړه وشکوئ، د خلکو په لاسونو کي چي هرڅه دي له هغو څخه په پوره توګه ناهيلي سئ، ځکه کله چي انساني او ټولنيزي اړيکي له منځه ځي نو ډېري ئې د ماتو هيلو پايله وي.**

سعید لودین

# په ارواپوهنه کې د ډاکټر سلومان آش یوه شهکاره تجربه

اروا پوهنه یو خورا پراخ علم دی، چې په ځان کې ډېر لوی و کوچني مضامین او د ژوند خاص اړخونه رانغاړي. د اروا پوهنې دا خاص اړخونه په مرور د زمان د لا زیاتو څېړنو او تحقیق په سبب ډېر روښانه او یقیني سوي دي. په نتیجه کې ئې ځیني فرضیې رد سوي دي او ځیني نظر ئې بیا تائید سوي او لا پسې پخې سوي دي او د نړۍ د اروا پوهانو دلچسپي ئې خپله کړې ده.

که څه هم هر کال په اروا پوهنه کې په زرهاوو څېړني او تجربې کیږي، چې د کلونو په تېرېدلو سره ئې ډېري پیکه سوي دي، خو ځیني ئې داسي څېړني او تجربې هم سته، چې په کلونو کلونو ئې خپل ارزښت له لاسه نه دئ ورکړی او تر اوسه لا هم اروا پوهان څېړني پکښې کوي. له دغو څېړنو څخه ئې ځیني په خورا ښه توګه، د اُصولو او قوانینو مطابق تر سره سوي دي، خو په ځینو څېړنو کې بیا دا حدود مات سوي دي، چې په نتیجه کې ئې د اروا پوهانو تر منځ جنجالونه هم راپورته کړي دي او په دې ډول ئې مخالف او موافق پیدا کړي دي.

د اروا پوهنې په نړۍ کې کلونه پخوا پنځوېشت داسي تجربې تر سره سوي دي، چې تر اوسه ئې لا هم خپل ارزښت ساتلی دئ او تر نن ورځ پوري ئې په نړیوالو پوهنتونونو کې زده کوونکو ته تدریس کیږي.

زه به دا پنځوېشت تجربې وخت پر وخت د همدې مجلې له لاري تاسي ته وړاندي کړم.

په (۱۹۵۱م.) کال کې ډاکټر سلومان آش (Dr. Solomon Asch) یوه شهکاره تجربه وکړه. دا څېړنه او تجربه په دې اړه وه، چې څنګه یو نفر په یوه ګروپ کې د ګروپ د نورو غړو تر اغېز لاندي راځي. په دې څېړنه کې ئې څو نفرو ته پر تخته څو لیکي وکښلې او ورته وویل سوه، چې کومې لیکې سره برابري دي او یا کومه لیکه اوږده ده؟



د ګروپ په غړو کې به یو نفر په دې څېړنه او تجربه ناخبره وو او نور ټول به په دې خبر ول، چې دا یوه څېړنه ده. د ګروپ باخبره غړو ته به ویل سوي ول، چې قصدا غلط جواب ورکړي.

د حیرانۍ ځای هغه وخت پېښېږي، چې کله ناخبره سړی د ګروپ د نورو غړو غلط جواب ویني نو په دې خاطر چې ځان یوازي په مخالفت کې واقع نه کړي، نو د نورو غړو په څېر دی هم غلط انتخابوي. که څه هم دی پوه وي چې دوی ټول ... دي.

محمد یاریار

# شهید پتیال؛ پر خپل ځان کار

تر هغه ځایه چې د شهید پتیال په باب بحث دئ، باورمن یم چې تاسو به هم پر دې نظر راسره همنظر یاست چې زموږ دغه راڅخه ضایع سوی ځوان، په خپل لنډ کي ژوندانه او ځوانه ځواني کي یو ځواړخیز فرهنګي شخصیت وو؛ شاعر وو؛ محقق وو، نقاد وو؛ داستان لیکوال وو؛ ژورنالیست وو؛ مدیر وو؛ مدني فعال وو؛ د سیاسي نظر او تحلیل څښتن وو؛ دروند ټولنیز شخصیت وو؛ د ملګرۍ په واقعي مانا یو ښه ملګری وو او د ژوندانه په دغه هر اړخ کي، یو خورا باجرئته انسان وو، چي بالآخره خپل دغه جرئت وخوړ.

د نوموړي د ژوند دا هر اړخ ئې څېړنه غواړي او امېد دئ، چي وخت پر وخت به د ده غوندي وطن مینو او ژمنو څېړونکو له خوا راسپړل کیږي او زموږ ځوان فرهنګي نسل به الهامات ځني اخلي، خو زه ئې اوس دستي، په دې کم فرصت کي، پر یوه بل مهم اړخ باندي مکث کوم چي د دغو یادوو اړخو د ایجاد او غوړېدو سرچینه ئې همدا بعد دئ او هغه پر خپل ځان خپله کار دئ؛ هغه لکه د عرفان په نړۍ کي یو د خدای دوست چي په خپل ریاضت او پر خپل ځان پخپله په خواریو او سختیو تېرولو سره، ځان د ولایت مرتبې ته رسوي، نو دی هم دغسي یو انسان وو، چي نه ئې د چا لمن ونیوله، نه هم چا تر لاس ونیاوه او نه د ده په دوران کي، د ده نسل ته دا چانس میسر وو، بلکي په خپل شخصي تشبُث سره ئې، پر خپل ځان پخپله کار وکړ؛ له ځانه ئې د کار سړی جوړ کړ او دا نو بیا بېل بحث دئ، چي زموږ د ټولني د کار سړی نه دی په کار او دا د کار سړی ئې په خپله وخوړ؛ لکه چي شهید عبدالمجید بابی چي ئې وخوړ؛ شهید عبدالله خیال ئې وخوړ؛ شهید عبدللطیف آشنا ئې وخوړ؛ شهید اسماعیل جان احسان ئې وخوړ؛ شهید عبدالعلي شمسي ئې وخوړ؛ لسګونه نور ئې وخوړل؛ بالآخره شهید مولوي عبدالغفور پیروز یې وخوړ او داسي فکر کیږي، چي دا خونخوره لړۍ به لا همداسي پسي روانه وي (ومي ویل چي دا بلاخوره لړۍ به پسي روانه وي، تر دې لیکني او یاد- غونډې وروسته ئې دا دی مفتي احمد فرزان پسي وخوړ)؛ تر هغه چي زموږ ټولنه د غفلت و جهالت له ډېر درانه خوبه را ویښیږي او دا نو داسي نه ده چي له دې مرګوني خوبه به، خود بخوده او په غیبي توګه را ولاړیږي؛ دا نه د غیبو کار دی، نه د معجزې؛ نه د ولایت کار دئ، نه د کرامت؛ بلکي دا پتیال غوندي وطندوست، فرهنګ مین، د ویښ شعور، روښان ذهن، ژوندي وجدان خاوند او متعهد ځوانان غواړي، چي د خپل ژوند، د ژوندانه د رنګینیو، هوسو و ارمانو او په پای کي، د خپلي ښایسته ځوانۍ په قیمت، د خپل

محبوب وطن او وطنوالو د آزادۍ، عزت او پرمختګ په لار کې، د بېساري مبارزې ننداره وړاندې کولای شي؛ هغه د سليمان لايق خبره:

د ځوانۍ د هوسو تاوده کلونه

هنګامې د آزادۍ ته وقفول چا

شهيد پټيال نه يوازې د ځوانۍ د هوسو تاوده کلونه د آزادۍ هنګامې ته وقف کړل، بلکې ځان او ځوانې يې هم، تر دغه ستر انساني ارزښت صدقه کړه. دا داسې هم نه وه چې شهيد پټيال خپله ټولنه نه پېژندله؛ د افغاني ټولنپوهنې له پېچلتياوو سره آشنا نه وو؛ د کندهارې ذهنيت له تورکېو سره بلد نه وو؛ د خپلو هغو پوهو او روښنفکرو اسلافو له هغو زاره ترکيو خبر نه وو چې د خپلو وينبوونکو نوښتو له امله، خپلې ټولنې څنګه کوټلې ويني په قې وهلې وې؛ دی د يوه متجسس، متشبث او ويښ ځوان په صفت، په دې هر څه ښه پوهېدی، بلکې د خپل محقق شخصيت په وجه، تر بل هر چا لاډېر او علمي په پوهېدی او همدا پوهه او درک وو، چې له هغه ئې د خپلې ځوانۍ هوسونه هېر کړي ول او د خپلې ځوانۍ تاوده کلونه ئې د تحجُر او تعبُد له مرګاني خوبه، د خپلې ټولنې را بيدارولو ته وقف کړي ول.

کله چې د امريکا د متحده ايالاتو، د نيويارک د سوېې يوه اوسېدونکې، له بېنوا ويبسايټه، مسلسلې نيوکې پر کولې چې پټيال ګوندي له خپل اداري موقفه په سوء استفاده سره، پوهنتون ته له حاضرۍ پرته غواړي ډيپلوم تر لاسه کړي، نو د ځينو استادانو له تينګار سره ـ سره به نوموړي حاضري ور کوله؛ د استادانو دا تينګار ئې د هغه د دولتي موقف له امله نه وو، بلکې هغه استاد، چې دی ئې په صنف کې د هغه و مخ ته شهيد کړ راته وويل: «ما د ده په مخ کې تدريس نه سواى کولاى؛ ځنې شرمېدم؛ حيران وم چې څه ووايم؛ ځکه دی په هر څه پوهېدی او تر ما ډېر پوهېدی؛ په همدې خاطر، دا ډېره مشکله وه چې يو ځوان استاد دې پټيال ته تدريس کولاى. ځکه مې تينګار پر کاوه او ور ته ويل مې چې لږ تر لږه زما په ساعت کې هيڅ ضرور نه ده چې حاضر اوسې؛ بله دا چې امنيتي وضعيت هم ډېر خراب دی او محافظين و امنيتي تدابير دې هم کمزوري دي، خو ده به راته ويل چې بايد د پوهنتون حيثيت ته تاوان و نه رسيږي، پروا نه لري، د دغې علمي مؤسسې ټول اصول بايد پر ما هم تطبيق سي او د پوهنتون په حريم کې بايد محافظين ځکه په ځان پسې نه کړم چې بيا مې د ټوپکې په تور تورنوي او دا هم د پوهنتون پرستيژ ته ضربه ده.» پر دې هر څه سربېره، بياهم نوموړی له بېرحمانه نيوکو خلاص نه سو او بالآخره همدې بې ځايه انتقادو د بلا په خوله کې ور کړ او په خپله انسانخوره ټولنه ئې خپل دا بې جوړې زوی هم وخوړ.

له بده مرغه ووايم که له ښه؛ چې هيڅ مکتب، هيڅ مدرسې، هيڅ اکاډمۍ او هيڅ معلم د پټيال د روزنې وياړ نه لاره او دی د خپل ځان زېږنده پخپله وو؛ هغه په خپل علمي ـ فرهنګي ژوند کې د هيچا مرهون نه وو؛ نه د ټولنې، نه د دولت او نه هم د کومې بلې خارجي يا داخلي مؤسسې؛ ځکه د ټولنې د ذهني ساختار په باب خو مو څه ناڅه اشاره وکړه، چې د علم و فرهنګ پر ډګر خپل د سر سړي پخپله خوري؛ آن که د متمدنې دنيا په انسانيترينه زمينه کې هم واوسې، بيا هم خپلې ټولنې ته د فکر و فرهنګ او علم و تمدن پر ځای د

تربګنیو، بې اتفاقیو، مرګونو، ورانیو او دوګماتیزم پیامونه را استوي چې د قرباني مثال ئې خپله همدا خوان شهید دئ؛ دولت ئې څکه د تربیې افتخار نه لري چې نوموړي، هغه مهال خپل چپه و راسته لاس وپېژاند چې اصلاً په افغانستان او خاصتاً کندهار کې، د دولتي مؤسسې په نامه کوم ارګان وجود نه درلود؛ دا هغه وخت وو چې د توپکیانو د بلواکي واکمني د تباهیو تور توپانونه هرې خوا ته چلېدل؛ واکمني نه وه، بلکې ترخه و پاچهي وه؛ د تعلیم و تربیې او تحصیل و فرهنګ تصور خو د چا په خوا و خاطر کې هم نه ګرځېده؛ آن د ژوندانه ډېر عادي جریان هم یو مخ مختل وو؛ دا هغه عیان دئ، چې حاجت ئې څکه د بیان نسته چې موږ و تاسو ئې، تقریباً ټول، ژوندي و عیني شاهدان یو، نو په دغسې یوه بټې - بیابان کې چې پټیال غوندي یو غاټول را زرغونېږي نو کوم باغوان به ئې د پالني دعوه وکولای سي؟ ډېره - ډېره عجیبه ده! هغه چې کله د زدکړو او تحصیل له سیستماتیک چوکاټه دباندې وو، نو نومیالی وو؛ مېړنی وو؛ ژوندی وو او ګرندی وو، خو چې کله پر رسمي چارچوب ور واووښت نو د سترګو اغزی سو؛ مات ئې مغزی سو او له ژونده پردی سو.

پر دې هم ټول شاهدان یو چې هغه هیڅکله د خپل وطن له غېږې جلا نه سو او د هیڅ یوې کورنۍ یا باندنۍ ادارې په امکاناتو ئې وده و نه موندله، بلکې ټول شاهدان یو او دا ثابته ده چې هغه د خپل ځان زېږنده پخپله وو.

دا یو ټولنپوهنیز اصل دی، چې انسانان د خپل محیط او حاکمو ټولنیزو شرایطو زېږنده وي، خو په پېړیو کې، د انسانانو په منځ کې، بعضي استثنایي څېرې ظهور کوي چې نه شرایط تاثیر پر لري، نه حاکم ټولنیز ذهن؛ نه چاپېریال ته تسلیمېږي او نه هم کومې خاصې زمینې ته ضرورت لري؛ دوی د هغو قوي نهنګانو په څېر وي چې د اوبو په مخالف لوري کې حرکت کوي او کېدای سي د (اسمایلز) په دې مقوله کې هم، منظور همدغسې کسان وي: «د سیند د بهېدو مخالف لوري ته لامبو کول زړه او خواک غواړي، که نه د سیند له بهیر سره سم خو مړه کبان هم تللای سي.» که د سیند د جریان پر ضد، د لامبوزن مثال شهید پټیال نه وي نو څوک به وي؟ او خدای تعالی دې ئې راته ژوندی لري، که بله ژوندۍ بېلګه ئې، خوان استاد مطیع الله روهیال نه وي نو بل څوک کېدای سي؟ بنایي د تور توپکي و طالباني دوران، یوه نسبتاً خاصه فرهنګي حلقه «بېنوا فرهنګي ټولنه» وګڼلای سو چې په توپکي تورتم کې ئې نامنظمې او طالباني تاریک (تحریک) کې سیستماتیکي هڅې پیل کړې؛ که دا نظر سم وي نو په دې خود رویه و خودجوشه فرهنګي حلقه کې عبدالقدیم پټیال تر ګردو خاص وو؛ شک نسته چې دا کړۍ د فرهنګ پر چرګې. پر کتاب، مطالعه، شعر، لیکنه او په مجموع کې، پر فرهنګي بحث را ټوله وه؛ مګر په څنګ کې ئې باندارونه، تفریحګاني، د ورقو، سطرنج او نورو لوبې او مېلې هم کېدې؛ په دې هر څه کې به، ځوانکي پټیال هم برخه اخیسته، مګر دونه وه چې د مجلس له منځه به یو دم پټیال ورک سو؛ یا چې به ئې کومې مېلې - منظرې ته د تګ قول کړی وو، ټول به حاضر ول، دی به غیب وو چې بل وخت به راپیدا سو او د یوه و بل ملګري له خوا په تر سخت انتقاد لاندې راغی، یا به د ناځوانۍ تور پر ولګېد نو ده به خبره په خندا تېره کړه، په یوه یا بله بهانه به

ئې خان خلاص کړ اما په فرهنګي باندار، سیمینار، مشاعره یا کوم علمي سفر کې بیا همېشه، د هر چا تر مخه حاضر وو چې زه خپله کوټې و کابل ته د فرهنګي سفرو ډېرې خاطرې ور سره لرم؛ موږ وروسته - وروسته پوه سوو چې د ده د یودم ور کېدو علت به کوم نوی کتاب وو چې ده به ئې مطالعې ته تلوسه لرله؛ یا به کومه سوژه وه چې تحقیق به ئې پر کاوه او یا به کومه علمي پلټنه و ګروېږنه وه چې په ډېر شوق به پسې سرګردان وو.

د طالبانو اخر کلونه ول چې پښتون ناظم (میر حیدر صاحبزاده) ته ئې پام سو: په ارغند جریده کې ئې د «پښتون فردوسي» په نوم معرفي کړ؛ بیا چې کله په ۲۰۰۱ م کال کې سیاسي تحول راغی نو یوه ورځ خو زه او دوه درې نور ملګري. د کندهار د ارغنداب ولسوالۍ «جوی لاهور» کلي ته، د دغه ناظم کوږ ته ورغلو چې د هغه سپین ږیری زوی (ملا محمد عیسی اخند) پکښې اوسېده؛ چای مو ور سره وچیښلې؛ د هغه د پلار په باب مو پوښتنې - ګروېږنې څنې وکړې خو په موږ کې یوازې پټیال وو چې دا کار ور ته تر هرڅه مهم ایسېده: هغه وو چې بیا ئې له ملا محمد عیسی اخند سره رابطه جاري وساتله؛ له هغه څخه ئې د میر حیدر صاحبزاده، یو شمېر ناچاپ آثار، وخت پر وخت اخیستل او د ترتیب و تدوین کار ئې کاوه. په ۱۳۸۲ کال کې یووار زه وشهید پټیال په کابل کې له سراسر افغانستانه، د ځوانانو یوه ملي کنفرانس ته تللي وو، په ضمن کې ئې پر خینو فرهنګي څېرو او مرکزو هم ګرځېدو؛ د علامه پوهاند رشاد په حضور هم مشرف سوو؛ پوهاند صاحب له خپل خصلت سره سم، هر څوک په تېره بیا ځوانان، د پوهې و فرهنګ کار ته تشویقول او پټیال څکه ځانګړی پر ګران وو، چې هغه په تانده ځوانۍ کې، د تحقیق سخت زړه خوږونکي کار ته. په داسې حال کې اوږه ور کړې وه چې دا وخت پر دغه ډګر. هغه د چا خبره، د بلا سا ختلې وه؛ علامه بابا د میر حیدر صاحبزاده د اهمیت په باب غنیمت توضیحات ور کړل او دی ئې په دې برخه کې وستایه او لا ډېر کار ته ئې وهڅاوه: بیا یوه بله ورځ د افغانستان د علومو اکاډمۍ ته ورغلو ارواښاد عبدالهادي هاند. په ډېره مهربانۍ سره، د میر حیدر صاحبزاده یوه خطي نسخه ور ته راواخیسته: هېر مې دي، چې کوم اثر ئې وو، غالباً همدا منظومه شهنامه به ئې وه، چې نوموړي د ناظم لقب پر اخیستی دئ؛ خط کش ئې هم په لاس ور کړ او دا ځوان محقق، په ډېره لېوالتیا ور ته کښېناست: د کتاب کچ مېچ ئې واخیست: مخونه ئې وشمېرل او نور ضروري یادابنتونه ئې په کتابچه کې څنې ولیکل: غرمه ډوډۍ مو د مهربان هاند مرحوم سره وخوړه: بیا څنې رخصت سوو. د شهید پټیال د دا ډول علمي تندي، فرهنګي فعالیت، څېړنیزو سترپاوو او برپاوو په باب ډېر څه لیکل کېدای سي، چې باید موږ او د ده نور ملګري ئې، د ځوان افغان نسل د ذهني روښانتیا، فکري ویښتیا او خپل ملي - علمي رسالت ادایني لپاره، وخت پر وخت راوړاندې کړي. موږ باید د شهید پټیال له پُر ثمره ژوندانه څخه دا زده کړو چې کلک هوډ او ملي تعهد څه ته وایي؟ څوک څنګه د ناممکناتو په تورتم کې، د ممکناتو رڼا ته ور وتلای سي؟ او ډېر نور څه! اوس دستي همدومره.

۱۰ عقرب ۱۳۹۶ - کابل. میرویس میدان

څېړنوال عبدالغفور لېوال

# دورېښمو لار پرون، نن او سبا

تاریخچه: لیکلي اسناد ښیي چې تر میلاده ۲۰۶ کاله مخکې دهغو ورېښمو دسوداګرۍ یادونه شوې، چې له چین څخه آریانا، عرب سمندرګي، مدیترانې او جنوب ختیځې اروپاته تلل. وروسته تر میلاد ۱۱۴ کاله مخکې بیا دیوې بشپړې تجارتي لارې څرک وینو، چې مخامخ ۴۰۰۰میله (۶۵۰۰کیلومتره) اوږده وه. اوس نو یوازې ورېښم نه، بلکې رومي ټوټې، مصري لوښي او هندي عاج او مسالې هم پرې وړل کېدې.

ولې (دورېښمولار)؟

د دې لپاره چې د چین ورېښم تر ټولو نامتو سوداګریز توکي وه، چې پر دې لاره وړل کېدل.

دمنځنیو پېړیو په یو شمېر عربي متونو کې د (طریق الحریر) نوم موندلای شو، همدا راز یو شمېر لرغوني نمونه هم شته چې دورېښمو په سوداګرۍ پورې اړه لري، همدا ز مونږ دورېښمو تنګي او یاهم د فرخي سیستاني د نامتو قصیدې دغه بیل:

با کاروان حله برفتم ز سیستان
با حله تنیده ز دل بافته ز جان

با حله اي بریشم ترکیب او سخن
با حلهای نګارګر نقش او زبان

خولومړني لوېدیځوال چې دغه لاره ئې په همدې نامه (دورېښمو لار) نوموله جرمني جغرافیه پوه فردیناند ریختوفن دئ، چې په ۱۸۷۷م کې ئې د دغې لارې نوم یاد کړی دئ.

تاریخي حدود:

له کوریا څخه راپیلېده. پر چین راتېریده او دننني افغانستان په حدودو کې ئې یو درېګوټیزه (مثلثي) کړۍ جوړوله، هند او پارس ته تلله، دآموشمالي څنډې ئې رانغاړلې او بیا د پارس له شماله عراق او سوریې ته وراوښته. دتاریخ په اوږدو کې ئې حدود بدل شوي دي، کله ئې ځانګې ډېرې پراخې شوې او کله هم دیوې لویې لارې په توګه ډېره دپام وړ وه.

دورېښمو تاریخي لار او افغانستان:

اریایي ښارونو دورېښمو لارې داصلي څلورلارې حیثیت درلوده: بلخ، ګندهارا (پرشاپوره ـ هډه او تکسیلا)، سیستان، بامیان، هرات، کوبا (کابل) او نورې سیمې ئې سره رانغاړلې.

دورېښمولار یوازې تجارتي اقتصادي ارزښت نه درلوده، بلکې د فرهنګونو دلېږد او دمدنیتونو د تلاقي لاره هم وه: اریایي، ساکي، هندي ـ بودایي، یوناني ـ بودایي (ګریکوبودیک یا یونانو باختري)، زردشتي، اینډوزردسترا او وروسته بیا اسلام او دعربي فرهنګ ارزښتو نه پر همدې لاره تللي راغلي




دي او تاسو ګورئ، چې افغانستان د دې ټولنود مزج مرکز دی: بلخ، هډه، سیستان، سوات، کابل، بامیان؛ میرزکه (خزانه) دوز ښېمو لارې پر سر د پرتو مدنیتونو مطالعه له افغانستانه پرته نیمګړې ده.

زوال: په ۲۲۰ میلادي کې دستري کوشاني امپراتورۍ زوال پیل شو او دیفتلیانو تر واکمنۍ ئې نږدې ۲۰۰ کاله وخت و نیوه، په دې موده کې د ساسانیانو، تورکانو او نورو سیمه ییزو ځواکونو ترمنځ جګړې پیښې شوې او دوریښمو لاره ئې ناامنه کړه.

دعربو تر راتلو وروسته په تېره بیا د غزنوي او غوري واکمنیو پرمهال یو شمېر سیمې بیا د ډاډ وړ شوې، دوریښمو لار ژوندۍ وه، خو نه په هغه پخواني رونق.

په دولسمه میلادي پیړۍ کې صلیبي جګړو منځنی ختیځ او اروپا وځپله او په دیارلسمه پېړۍ کې مغولي (چنګیزي) توپان ختیځ او دوریښمو پرلارې پراته مدنیتونه داسې جارو کړل چې، نورنو نه وریښم پاتې شول او نه ئې هم تجارتي لاره... وروسته اروپایانو سمندري لارې غوره وګڼلې، هم امن وې او هم د دوی په واک کې؛ هند، چین، افریقا او لیرې ختیځ ته د بېړیو په رسېدو سره دوچې لار له دوده وغورځېده...

اقتصادي ارتیاوې بدلې شوې او دوریښمو لاره دتاریخ برخه شوه.

... یوځل بیا دوریښمولار:

آیا موږ دریېمې زریزې (Third Millennium) ته ور ننوځو؟

بېرته د اسیا پر ځوا:

- دریېمه زریزه دیوه نوي اقتصادي دوران په توګه:
- درنه صنایع ختیځ ته (خو په لویدیځ انحصار کې)
- ختیځ: بشري ځواک، داینرژۍ سرچینې، دمصرف لنډ بازار (سم نیم نفوس)، وریا چاپیریال.
- لویدیځ: پانګه، مدیریت او تکنولوژي (علم)، امنیت.

دوهمه فرضیه: ترسرې جګړې وروسته؛ دسیمې نوی اقتصادي وضعیت:

چین او هندوستان خورا چټکه اقتصادي وده لري، لیرې ختیځ او جنوب ختیځه اسیا (چین، جاپان، کوریا، هند، اندونیزیا، مالیزیا، سینګاپور، هانکانګ، پاکستان، نیپال، بنګله دیش او نور په تولیدي حوزو بدلېږي) دوی ټول اومه صنعتي موادو او اینرژۍ ته اړتیا لري.

داینرژۍ او اومه موادو حوزې: منځنی ختیځ، مرکزي اسیا تر قفقاز پورې او افغانستان.

افغانستان د درې وارو بشري ـ اقتصادي حوزو: (جنوب ختیځې اسیا، مرکزي اسیا او منځنی ختیځ) ترمنځ د وصل کړۍ ده. چین، هند، پاکستان ... اینرژۍ او خامو موادو ته اړتیا لري، مرکزي اسیا او منځنی ختیځ د یادو شویو هېوادونو تولیداتو ته او تر ټولو لنډه لاره پر افغانستان تېرېږي، دا په حقیقت کې دورېښمو دزړې لارې دبیا احیا دمفکورې زړی دئ.

موږ د درو و سیمه ییزو اقتصادي سازمانونو د وصل حلقه یو: سارک، شنګهای او ایکو. خو په یاد ولرئ، چې افغانستان یوازي ترانزیتي نه، بلکې پخپله هم تاميناتي او هم مصرفي اقتصادي ارزښت لري. (۱ تریلیون ؟)، (۳ تریلیون ډالر) خام مواد او پرانیستی بازار.

ترانزیتي ظرفیتونه:

- مځکه (دوسپنې پټلۍ، سړک او ...)
- ترمځکې لاندي (پایپ لاینونه ـ سایبر ترانزیت) تاپي
- هوا (بر ېښنا مزي)
- خوان بشريّ خواک، له ګنې ګوني تشې سیمي، مستعد فرهنګي، ټولنیز وضعیت.

خنډونه:

۱ ـ زاړه ناکام سیاستونه.

- نړۍ والي اړیکي (یوازي دملي ګټو پرښنسټ ؟).
- له ایډیولوژیو څخه دسیاسي اوزارو په توګه کار اخیستنه.
- پوځیوالـه Militarism سیاسي د سړې جګړې میراث.
- ژیو پولیتیکي ستونزي او د پراختیاغوښتني سیاست لوبي.

۲ـ د نړۍ والو لویو ځواکونو ستراتیژیکي سیالۍ (منځنی ختیځ، افغانستان، منځنی اسیا او ...)

۳. ناکامه حکومتونه (بېروکراسي، فساد، توکمیزتاو تریخوالی).

۴. اقتصادي وروسته پاتي والی او ناامني (دجرګې او هګۍ اړیکه)

۵. دمدني تولنو کمزورتیا او پر اقتصادي شعور د سیاسي غرایزو پیاوړتیا.

حللاري او وړاندیزونه:

- دملي ګټو او سیمه ییز ثبات دانډول (بېلانس) پر بنسټ د نړۍ والو او سیمه ییزو اړیکو او سیاستونو ټاکل.
- دمدني ټولنو وده او سیمه ییز توب
- اقتصادي وده د پوځیګرۍ پرځای
- یو د بل اړتیا او داړتیا او دپوره کولو دظرفیتونو پېژندل او په دې اړه عملي او علمي میکانیزمونه
- د سیمه ییزو سازمانونو فعالول (له انفعالي بڼې فعالې بڼې ته اړول).

پایله:

دورېښمو لار: هیله نه اړتیا ده، نو: دورېښمو لاره بیا راژوندی کېږي. خو څه وخت؟ دا په موږ پورې اړه لري!

بشریت بالاخره دخپلو ګټو او ارزښتونو دساتلو لپاره یو له بل سره د راکړې ورکړې اوزار او لارې بیا مومي. په وچو ویالو کې اخر بیا او به راځي.

زبير افغان

# ادبستان چې ما ولوست

په فېسبوک کې مې د دې کتاب د چاپ خبر ولید، زه ورته خوشاله سوم. کتابخانې ته ولاړم او له دې کتاب سره مې څو نور کتابونه هم د لوست لپاره انتخاب کړل، لومړی مې د ملا ضعیف کتاب مطالعه کړ، له سریزې بیا تر پایه مې نقدونه پر لرل، خو د خینې نزاکتونو له امله مې اوس مناسب ونه ګڼل. بیا مې ادبستان ته مخه کړه. ما مخکې هم د اجمل ښکلي ادبي زاویې، د نړۍ ادب او د ژباړې په اړه لیکلې مقالې لوستې وې. په دې کتاب کې مې خینې خایونه په ښه کول چې ما له خپل لیدلوري پرې نقد در لود.

د کتاب پر سپینه ورکه، اخیر دا په ښه سوي خایونه ښه ډېر سول او ما هم پر دې مطالبو د خپل نظر د اظهار لپاره یوه لیکنه غوره وبلله.

که څه هم اجمل ښکلی تکړه لیکوال دئ. لیکنې ئې زموږ لپاره غنیمت دي. له ادبستان او، نورو کتابونو ئې ما ډېر څه زده کړي دي، اما په دې کتاب کې ئې خینې خایونه ما ته د نقد وړ ایسي. زه ئې په دې لیکنه کې د کتاب له حوالو سره خپل نظر هم یو خای لیکم. یا به واقعا استاد ښکلی تېروتی وي یا به زه خطا یم. که هغه تېروتی وي نو اینده چاپ کې ممکن دا اصلاح کړي او که زه خطاوم نو لوستونکي به ما متوجې کړي.

په ۷ مخکې د سینوهه په اړه لیکي: «ادبیات له موږ سره د ژوند په پېژندولو کې مرسته کوي. چا چې سینوهه لوستی، تر بل هر هغه کس ژوند ښه پېژني، چې سینوهه یې نه دی لوستی.» (ادبستان: ۷)

دا به ومنو چې سینوهه تر یوه حده ښه کتاب دئ. ما لوستی دی او د مطالعې پر وخت ئې خان تر پایه راباندي وکوت. مګر په دومره زیاتوب نه ارزي. بیا که د لیکوال هم دومره خوښ سوی وي، نو دا به د ده خپله شخصي تجربه وي، اما حتمي نه ده چې د لوستونکي نظر دي د ده په شان وي. لیکوال خپله پر شعرستان د نقدونو په لړ کي دا نقد هم کړی چې لیکوال (درمل) د خپل ذهنیت له کړکۍ لوستونکي ته هم کتلي. اما دلته ئې خپله هم هغه کار کړی چې پر درمل ئې له همدې امله نقد کړی وو.

زه ډېری داسې کسان پېژنم، چې د سینوهه نوم ئې هم نه دی اورېدلی اما ژوند سم پېژني. موږ د ښه ډېرو ډېرو انسانانو په اړه هم مالومات لرو، چې سینوهه د هغوی په وخت کې لیکل سوی نه وو، اما ژوند ئې سم پېژندی. دا الفاظ زما په اند له مبالغې خالي نه دي، د استاد ښکلي په شان لیکوال باید داسې زیاتوب ونه کړي. که دوی هم له خپلو الفاظو او جملو سره پام ونه کړي او په کتاب کې لیکلي جملې ئې له زیاتوب او مبالغې ډکې وي، نو له نورو کشرانو ګیله نه سي کېدای خکه هغوی ئې له دې مشرانو لیکوالو زده کوي. د استاد په شان لیکوال باید په لیکنه کې له خپلو جملو سره دومره دقت وکړي، چې تر خپله وسه ئې هیڅ توری او جمله نه زیاتوب وي او نه زاید. اما په کتاب کې ئې د داسې مثالونو لیدل موږ ته ناهیلي کوي.

د ادبستان په ۱۰۵ مخکې لیکي: «که لیکنه راته تازه فکر رانه کړي او پر خپل ذهنیت مو شکمن نه کړي، مطلب دا چې په مونږ کې یې مثبت بدلون نه دی راوستی او خپل مسوولیت یې نه دی تر سره کړی.»
زه د استاد له دې پاراګراف سره موافق نه یم. ټوله پړه پر لیکنه او لیکوال وراچول انصاف نه دی. ځینې وختونه لوستونکی داسي وي چې له لیکنې څخه هغه مطلب نه سي اخیستی چې لیکوال پکې ځای پر ځای کړی وي. ما داسې لوستونکي لیدلي چې له واضحو لیکنو نې هغه مطلب نه دی اخیستی چې لیکوال تر لوستونکو د هغه رسول غوښتل. دلته به ولې پړه پر لیکنه او لیکوال ور اړوو؟ لیکوال هغه مهال ملامت دی، چې په لیکنه کې لوستونکي ته نوی فکر په سم ډول رسولی نه وي. لیکنه نې ستونزي ولري. نوی فکر پکښې نه وي. که خبره د دې برخلاف وي. نو بیا لیکوال او لیکنې ته د ملامتیا ګوته نه نیسو. بلکې لوستونکی دي لیکنه په دقت ولولي او هلته شته مطالب دي را برسېره کړي.
استاد ښکلی په ۱۰۷ مخکې لیکي: «رنسانس نویو ساینسي پر مختګونو ته لار جوړه کړه او ساینس په اروپایي ذهنیت کې ژور بدلون راووست. فلسفه یې تجربي مېتود ته راښکله او عقل پر ځای پر حواسو تکیه ډېره شوه.»
دلته له دوو خبرو سره جوړ نه یم. ساینس یوازي په اروپایي ذهنیت کې بدلون نه دی راوستی. بلکې د نورې نړۍ ذهنیتونه ئې ښه پوره بدل کړل. نو یوازي اروپایي ولې یاد سوي؟ صرف دومره بې لیکلي وای چې ساینس په اذهانو کې ژور بدلون راووست، د یو ځای ذکر ته اړتیا نه وه.
بله خبره دا چې که فلسفه تجربي مېتود خپل کړي نو بیا د ساینس او فلسفې پولې سره ګډې نه سوې؟! مونږ ساینس داسې تعریفوو چې پر تجربه ولاړ علم ساینس دی. د فلسفې په اړه وایو چې پر ماوراء الطبیعت بحث کوي. مطلب دا چې فلسفه یوازي عقلي دلایلو باندې اتکاء کوي تجربې ته چې خبره ورسېده نو فلسفه پاته نه سوه بلکې ساینسې مرحله شروع کېږي.
که د استاد ښکلي هدف دا وي چې فلسفه د خپلو ادعاوو د اثبات لپاره ځیني ساینسي مېتودونه کارولای سي، نو زه هم مشکل نه وینم. اما دلته لیکلې جمله بل څه افاده کوي. د ټولې فلسفې په اړه د تجربي مېتود خبره سوې ده چې د ساینس او فلسفې پولې پکښې ماتې سوې.
یوه بله ستړ نزه له (عقل) توري سره د (د) نه شتون دی، چې جمله کې نې مشکل جوړ کړی دی. که استاد ښکلی ارادي داسې جمله لیکې، نو زما په اند ویلو کې مشکل پېښوي، نه پوهېږم دوی به ئې هم ورسره لري کنه؛ خو زه ور سره ستونزه لرم. یا که ټایپي تېروتنه وي، نو یوازې دا یوه نه ده بلکې کتاب تر ۵۰ ځایه نوري تېروتنې هم لري چې اینده باید اصلاح سي.
په همدې مخکې د تیورۍ په اړه لیکي: «د تیورۍ بنسټ پر فرضیې ولاړ دی. فرضیه چې کله په دلایلو ثابته شي، بیا ترې تیوري جوړه شي او په ټولنیزو علومو کې د یوه قانون په توګه ومنل شي.» (ادبستان: ۱۰۷)
د تیورۍ په اړه د استاد له دې دریځ سره جوړ نه یم. ما داسې اورېدلي او لیدلي دي چې تیوري خپله ناثابت نظر ته وایي. ځکه خپله استاد په (۱۰۹) مخکې کاږي: نوی تیورسن پر زړو تیوریو باندې فکر وکړي، ډېر څه ورته پکې ناسم ښکاره شي او پر بنسټ یې د څه منلو او د څه ردولو د مېتود له لارې د زړې تیورۍ پر بنسټ او مخالفت کې خپله نوې تیوري ورغوي.
دلته نې ویلي چې نوی تیوریسن د څه منلو او ردولو په مېتود بله تیوري رغوي. که تیوري یوځل په دلایلو

ثابته سي او د قانون په توګه هم ومنله سي نو بيا يې ردوو ولې؟ ثابت شی خو بايد ومنل سي؟ دا دوې خبرې تر خپل منځ سره ټکر دي! په ټولنيزو علومو کې د تيورۍ اصطلاح هم نوې ده. تيوري په ساينسي علومو کې استعمال لري اما ټولنيز علوم تر اوسه د تيوري په نوم کومه اصطلاح نه لري. دا هم د تامل وړ ځای دی.

په (۱۰۸) مخکې د څېړنې او تيوري فرق بيانوي: «پر دې بنسټ موږ په علومو کې له دوه شيانو سره مخېږو، چې يوه ته څېړنه وايي او بل ته تيوري. يو څېړونکی او بل تيورسن.»

البته په همدې مخکې تر يوه پاراګراف وروسته بيا داسي کاږي: «زموږ خوان څېړنې هم له تکراري خبرو ډکې دي؛ نو چې څېړنې مو داسې نادقيقې او تکراري وي، د تيورۍ ايجاد څنګه ممکنبدای شي؟»

که تيورۍ څېړنې ته اړتيا نه لري، نو بيا د اثبات دلايل ورته له کومه سي او د څېړنې په نه شتون کې د تيورۍ نه ايجاد ولې ناممکنېږي؟ څکه څېړنه بيل شی ده او تيوري له څېړنې پرته ايجادېږي، نو يو تر بله ئې سره تړلي ولې دي؟

په (۱۳۸) مخکې راغلي: «زموږ مورخانو چې له ادبياتو استفاده نه ده کړې، دا تصور يې هم پر ذهن حاکم و، چې ادب ټول دورغ دي او تاريخ ټول رښتيا؛ خو چې ځير شو، خبره سرچپه ده. وايي، چې له تاريخه نېټې او د اشخاصو نومونه لرې کړې، ټول دروغ دي او په ادب کې چې کرکترونه او نيټې په پام کې ونه نيسې ټول رښتيا دي. ادب د عامه ذهنيت ښکارندويي کوي او د تاريخ کار له عامه ذهنيت سره دی.»

زما په اند دلته استاد ښکلي له تاريخ سره يو څه بې انصافي کړې ده. د تاريخ په اړه دومره منفي نظر لوستونکو ته ور کول هم ښه نه دي. ليکنه يو ليکوال د خان لپاره نه کوي، بلکي لوستونکي ئې په نظر کې وي.

د استاد دا دريځ چې خبره سرچپه ده. يانې تاريخ دروغ دي، زما په اند ناسمه ده. تاريخ کې دروغ ځای سوي دي اما په دومره لويه پيمانه هم نه دي چې که نيټې او د اشخاصو نومونه ځنې وباسو نو يوازې دروغ به پاته سي. د تاريخ په اړه بايد استاد ښکلی په ډېر دقت تللی وای. د لويو ليکوالو په ټولنه کې ښه ډېر پيروان هم وي، نو چې استاد د تاريخ په اړه دا دريځ خپلوي. د پيروانو به يې څه حال وي؟

يو ليکوال بايد په ليکنه کې تر احساساتو لاندې را نسي. که احساساتي هم سي، خوکنټرول ئې بايد له لاسه ور نه کړي. که مورخ د ادب په اړه ناسم دريځ لري. نو ايا اديب به هم د تاريخ په اړه هغه دريځ خپلوي چې مورخ ئې د ادب په اړه لري؟ دلته استاد ښکلي د مورخ دريځ غندلی خو خپله ئې بيا د تاريخ په اړه بې انصافي کړې ده. موږ يو له افراطه را ګرزوو، خو خپله هم تر حد ور سره وزو.

په (۱۲۳) مخکې استاد ليکي: «په پارسي، اردو (او پښتو) شاعرۍ کې ښځه د مانا پنځګره فاعله سرلې ده نه، بلکې د لېوې ستراس په اند يوه تېره هېره کلمه ده.»

دلته په لومړۍ جمله زه بيخي نه پوهېږم. يا به زما کمزوري وي يا هم ممکنه ده د ليکوال ناسمه ژباړه وي. دا هم احتمال لري چې کمپوزر غلطي کړې وي. څکه زموږ کمپوزران هم په ليکنو کې ګوتې وهي. زموږ له ليکنو سره يو وخت همداسي معامله سوې وه.

د نورو کتابونو په پرتله دې کتاب کې تايپي تېروتنې هم خورا زياتې دي. پر شعرستان ليکنه کې ئې يوازې ۶ واره د کتاب شمېرې ناسمې ليکلي دي. کمپوزي غلطۍ کې تر ډېره ليکوال نه ملامتېږي خبره اداري ته متوجې وي. البته يادونه ئې څکه لازمه بولم چې اينده ايډيشن کې ئې بايد له دې تېروتنو پاک کړي.

# هنر او ادب

عطایي ملا

## غزل

که تېشې د شیرینو اوریل لیدلای
له حسده به فرهاد پر سر وهلای
چې عشق رونډ. مینه کنه او زړه بیده وای
د خوبانو راج به څنګه تخت نیولای
زه و یار او د جفا اغزنه دښته
تر قیامته ده کرلای ما رېبلای
خودبین حسنه! کاشکي زه ستا لېونی وای
خلګو زه او ما آینې د ښار ویشتلای
د ګناه ګرز که تویه کړه پر ملا ماته
ژړا تا به د ملاماتو لاس نیولای
د غزل رمه مې تښتي له آغېله
اف شپونکیه چې ژوندی وای تا ایلولای
شېرنو که د تېشې واري څارلای
هر بخري به فرهاد رانجه کولای
که مې شرم د شهرت له سپکي نه وای
په بڼو به مې ستا نوم پر غرو کیندلای
په سنګدل آتش نفسه! دریغه. دریغه
زه د موم جوړ کالبد وای تا پوکلای
چې شیره دي د جنون نه وای څکلې
شیر مست عقله! خام وسواس به کلک تړلای
لا سنیوی که د کافر زلفو نه وای
اور د شونډو به سقر ته سیخ بېولای
آخ چې زه زهرلړه تېغ وای په څوان مټ کې
ککرې د ستمګرو مې پرېولای

نصیب الله حقپال

## غزل

تصور د حق باطل دی. له باطله حق راځي
سمندر د پوهې خم سي. چې خبري سي باقي
زه ئې بیا یمه محراب ته. د ده زور و میکدې ته
د اسي ښکاري زړه یاغي سو. د غه نخښې طوفاني
لنډه زنه شینکی خال ئې. پاس پېره د زلفو جال ئې
هله ژر سه عزرائیله. کنې بل څوک مې روح وړي
ما په خوب کي خوب لیدلی، کې تعبیر را ته څوک راکي
د خپل یار سره یم وصل. پر حالت د جدایي
هلئ ژر شیخ را حاضر کئ. د تقوا خوند ترې پوښتمه
که تسلیم مې سو جنون ته. بیا نو نه یم تاواني
په خندا کي په ژړا سم. یا ژړا کي په خندا سم
دا اوس عشق ته یم قریب که، دا کاني د لېوني
د مودو مودو بیمار دئ. حقپال مرګ ته انتظار دئ
ته د ستر ګو قُل پر چُف که. ګوندي جوړ سي دا زخمي

افسانه غزل

## غزل

نه ستا له درده، خو له بله درده مرم سکروټي
دا مې ملهم دی را ته را کړه لړ زخم سکروټي
کمزوري نه یم. راشه. بل امتحان هم در کړمه
ته صرف را ګوره زه په لپو درته خورم سکروټي
جینی مصروفې. په نګریزو ګل کوي لاسونه
زه هم لګیا یم. په لاسونو. ګل کوم سکروټي
که اندازه ورته زما د زغم صبر وي نو
هغې به درد را ته کم کړی نه و کم سکروټي
ستر ګي نمجني "افسانې" د افسانو په خاطر
خدایږو اوزګاره دی او نه لري بل غم سکروټي

ګران اغاالفت یار

## غزل

زه ئې مست لېونی نه کړم لاهنوز ئې کړم خراب
څومره تروش بوی ئې ولاړسودا سور که ده که شراب

چې مې عقل لېونی سي چې شعور پکښې سر سام سي
پکښې ولړه بخري په خاطر زما د شباب

یو د قیس په شاني ستر ګي دلیلا د حسن خدایه
در څه غواړم نه مې توان سته نه مې تاب

سرې سکروټې بې الوی کم زه بې اور په لمبو او خورم
زه د نسله دخلیل یم زه نواب یم زه نواب

څه اسرار ستا په لید وکي چې اسرار را ته مسکی سي
چې تا وینې ما ته وایي الفت یار دې انتخاب

حاجي غلام نبي سعید

## غزل

د تور اوربل له شا وخوا څخه د بانډې یمه
له دې ناهیلي تمنا څخه د باندې یمه

د خپل نصیب قسمت په وړاندې څه ویلای نسم
او س له دعا او له دعا څخه د باندې یمه

د معذرۍ په قلم کاږمه ساده لفظونه
د رنګینیو له دنیا څخه د باندې یمه

ښه سوچې شور د ژوندانه راسره غوټه تسو
ښه سوچې بیا هم له غوغا څخه د باندې یمه

د نفر تو پر پوله - پوله او سپدلی نه یم
له دې وحشي سپېرې بیدیا څخه د باندې یمه

پروفېسر راز محمد راز

## غزل

ژوند او وخت په دواړو ډېر کړو ناښاد خلګ
په آباد کورو کې اوسي برباد خلګ

وخته ته هم لکه پانه هسې ژړ سې
ستا له جوره ډېر خزان سو شمشاد خلګ

ژوند، خواهش، حسرت، مرګی، تور قسمتونه
بند د جبر په داهرو یو آزاد خلګ

په سکوت سره تنقید په ستر ګو بازي
د بېینو په کور کې اوسي نقاد خلګ

هره ورځ ئې شهلا ستر ګي تپوس کاندي
مړه تر څو به وي په تې کې فرهاد خلګ

عبد الله ستوري

## غزل

څه ګلاب - ګلاب وختونه لولپه سول
زموږ ځواني او ارمانونه لولپه سول

مغشوقو چې په عاشق ته په ناز کښېښود
غوندره زنه او خالونه لولپه سول

په امید - امید ئې تور اوربل سپينېږي
سرې منګولي سپين لاسونه لولپه سول

سنت رېره لنګوټه او بوري څنې
حجرې او کتابونه لولپه سول

یو یشتمې پېړۍ دغه نوښت را کړ
ستوری، خیال او غزلونه لولپه سول

خلیل احمد قیس

## غزل

زه دي وجود یم زه دي یار یم مخ ته لاس مه نیسه
زه د یاغي سندرو ښار یم مخ ته لاس مه نیسه

زه دي د عقل د جلوې په مذهب سوی یمه
نور دي هم هر څه ته تیار یم مخ ته لاس مه نیسه

نن مي غزل ترځوانیمرګو سترګو وڅڅېدل
هم ستا د زړه هم د بادار یم مخ ته لاس مه نیسه

د خوږې مینې حبشي نظر ته ودرېدم
ستا د کافر حسن پر لار یم مخ ته لاس مه نیسه

زما د ګلاب ګلاب ځوانۍ په حسن اور پوري که
خوله رانژدې که انتظار یم مخ ته لاس مه نیسه

زما د زړه پرنڅا ګرو باندي دا اثر دئ
چي د کابل د پېغلو هار یم مخ ته لاس مه نیسه

زما د شعرو شیرینۍ ته دی اسمان راغلی
ستا قیس ګوهر غزل شهکار یم مخ ته لاس مه نیسه

شانواز باقر

## غزل

راوستی انتظار یم د عشق کومي مرحلې ته
پایزیب مي مي د زنځیر په ځای ایښودی دروازې ته

دنیارا ته په سرباندي راخیږي اوزه چوپ یم
اخر مي هم ورپام شولو دې خپلي حوصلې ته

یادیږي مي د تېلو اخیستلو وس مي نه وو
ماښامکي د باران یووخت راوړي وو ډېوې ته

پیسې وې. که تصویر و. که تعویز و او که خط؟
په څه پسي ئې ګنډې ورکولې لوپټې ته؟

موږ اوس هم ماتوو نظر په تار د پرتوګ اېښ
په کومه ورځ چي ودرېږو د خپل کور ائینې ته

باقره! دې شهرت خو نه زه ښاد کړم نه اباد
زه کله هم دمه نه سوم د خپل قامت سایې ته

صدیق الله مین

## غزل

دچا مي سر دچامي زړه په کار دئ
چي غواړي ما زما هغه په کار دئ

سوداکوم خو د کاندار اشنا!
ګران دي وي خیر خوشی مي ښه په کار دئ

غزل ته هر لفظ لکه کاني غواړم
غزل ته خیال مي ډیبا اوبه په کار دئ

جرم تا کړی مجرم زه یم په کي
دلته لږ فرق د ته اوزه په کار دئ

مینه! نور دي نو دځان غم کوه!
نور دچا غم مه کړه او نه په کار دی

حبیب الله قلم مل

## غزل

زه په غم کي یم بې غمه له خوښیه
ښستمن نه یم څه فریاد کړم له ښتیه

کوڼ خو وې نور به هم کوڼ سې که یې واوري
د دردمن اولس د درد سوې سلګیه

نور ئې څه کوې تصویر ته چي ئې ګوري
دارا پېښه ده د خپل دوست له دوستیه

له پرهره دې خاموشه اواز اورم
وایي پاڅه دا یې ښېږي له خولګیه

سوه د زړه د سمندر په تل کي ډوبه
د غمجنو ارمانو ډکه بېړیه

هسي زړه په خوري وچا ته فایده نه کړي
"قلم مل" دي کړي ځان خلاص له شاعریه

مصطفی پسرلی

## غزل

په اوربده او لنده لار د ژوند پوه نه شوم
په خزان او په بهار د ژوند پوه نه شوم

همېشه مې د زړه سترګې ستا پر لور وې
خو زه بیا هم په دیدار د ژوند پوه نه شوم

جوړه بله بهانه شوه چې سنګسار شوم
زه په دل او په دلدار د ژوند پوه نه شوم

چې ویده شم رڼاګانې په خوب وینم
خو په ویښه په سهار د ژوند پوه نه شوم

پسرلي خو یې لا خوند لیدلی نه دئ
چې لري ولې تلوار د ژوند پوه نه شوم

ذبیح الله احساس

## غزل

چې بار - بار وایې مابنام دئ
وایه! بیا څه انتظام دئ

چا وېل مینه ئې زده نه کړه
ما وېل دغه زما قام دئ

دلته قتل روا بولي
عشق لا هغسې حرام دئ

څه ته هم رښتیا وواېه!
هه! زما په لاس کې جام دئ

له دې وېر به څه درنیست وي
چې پر موږ د عشق الزام دئ

احساس څوک دئ احساس څه کړي
احساس تا باندې بدنام دئ

ګل رحمان رحماني

## غزل

بېګاه څنګه سرګردان وو څراغونه
شپه ولاړه وه، روان وو څراغونه

تنهایي وه، تش واټونه وو او زه وم
په دې ښار کې مې یاران وو څراغونه

هر قدم کې پر خپل سیوري غورځېدمه
دې حالت ته مې حیران وو څراغونه

ښکلو سترګو کې ئې او ښکې ځلېدلې
که وینځلي په باران وو څراغونه

د ښېلتون ویر دې یو ما ونه کړ ښکلې
په خدای ټوله شپه پرېشان وو څراغونه

دلته هرڅوک په تیارو پسې روان وو
په یو چا باندې تاوان وو څراغونه

هو! د رنګ او رڼاګانو مین نه وم
ستا له مخه راته ګران وو څراغونه

کلي دک وله تیارو او بلاګانو
هدیرو کې به پرېمان وو څراغونه

استاد محب الله ترابي

## غزل

خانده را ته، ته هم دا مې زړه غواړي
واوري غواړي، د ر غواړي او خوله غواړي

ستا ملنګ بس ستا حسن ته غلی دئ
شپه غواړي جنت له یوه وله غواړي

یوه له خیاله وکه د الطاف خندا
مات زړه به نګاره نور نو څه غواړي

نه غواړي هستي او بدیل نه غواړي
داسې یو څوک شته چې زمونږ به غواړي؟

ستا انسان بس ستا غېږې ته تږی دئ
هره تقاضا به ستا له پله غواړي

عبدالکریم عامر / لورالایي

# د اخوند رشید قبر

په پښتو ادبیاتو کې د اخوند عبدالرشید نوم د هیڅ تعارف محتاجه نه دئ. که ئې تعارف ته سړی اړ شي، نو داسي ویلای شي، چي نوم ئې رشید(اخوند عبدالرشید) وو. د پلار نوم ئې سلطان حسین[11] وو. نیکه ئې عبدالرحیم[12] نومېدئ. خپل نسب ئې قریشي، فاروقي یاد کړی دئ. د لنګرکوټ ګړي کپوره شهباز ګړې اوسېدونکی وو:

که د چـــا مـــي نـــوم پکـــار وي
د نامـــــه مـــــي طلبګـــــار وي

زه خاکپـــــــای د عالمـــــــانو
رشـــــید مـــــي نـــــوم دی مؤمنـــــانو

د ســـــلطان حســـــین فرزنـــــد یـــــم
د عبـــــدالرحیم[13] دلبنـــــد یـــــم

او پـــــه اصـــــل قریشـــــي یـــــم
پـــــه قـــــریش کـــــې فـــــاروقي یـــــم

لنګرکـــــوټ وطـــــن زمـــــا دی
هـــــم مـــــأوی مســـــکن زمـــــا دی(۱)

لنګرکوټ له پېښوره شل کوسه لیري دئ (کوس بېلا بېل یاد شوی دئ، یو کوس په میانیزه توګه (اوسطاً) درې نیم کلومیټره یادېږي)(۲)

تر دې وروسته اخوند رشید وایي، چي زما نیکه ګان د ملتان دي او هورې ئې ښه شهرت دئ. وایي چي د اکبر باچا په دور کې دی هورې منصب دار وو، چي بیا بندي شو او غالباً د ملتان څخه لیري کړل شو، د ده له وینا داسي ښکاري، چي هغه بیا له ملتان څخه شړل شوی دئ:

اعلی جد مي د ملتان دي
په ملتان کښي دوی عیان دي

[11] د مغل د دربار له عالي رتبه امیرانو څخه و (وګورئ: طبقات اکبري جلد دوم ــ ۴۷۰ مخ، سائنس بورډ چاپ لاهور ۱۹۹۰.)

[12] د عبدالرحیم په نامه "خان خانان" نومي شخصیت د مغل په دربار کې ډېر نامتو سړی دئ، چي د مصنف تر ژوند ۱۴۰ کاله لمخه په واقعاتو کې ذکر شوی دی (وګورئ: طبقات اکبري جلد ۱ ــ ۲۹، ۴۶ مخ، ۱۹۹۰ سائنس بورډ لاهور چاپ ــ جلد ۲ ــ ۴۴۱ مخ) تر دې هم له مخه په شخصیاتو کې ملک عبدالرحیم نومي ته د (علاء الملک) خطاب ورکړ شوی وو، د ملتان او فتح پور سیمي ده ته حواله شوي وې (وګورئ: طبقات اکبري جلد ۱ ــ ۳۹۴ مخ)

[13] له ـ سره بله نسخه ده په هغه کې عبدالرحمن لیکلی دئ.

خيلخانه لرمه ډيره
په ملتان کښې تر حد تيره

څوک په دوی کښې عالمان دي
څوک شيخان دي څوک صوفيان دي

د اکبر بادشاه له وقته
انعام کلي خوري نېک بخته!

هم روزينه هم منصب خوري
په نسب او په حسب خوري

چې تقدير د حق څرګند شه
اعلی جد مې راغی بند شه

په دا ملک يې کور وکړ
د ملتان نيت يې و نه کړ

فرزندان څني پيدا شو
کل د خلقو مقتدا شو

خلقه شوه نفع منده
ترې په علم بهره منده

چې په لاري د خدا شو
هغه واړه مقتدا شو(۳)

له دې څخه داسي ښکاري، چې په اصل کي د اخوند رشيد کورنۍ د ملتان له نامتو کورنيو څخه وه او د باچهي منصبونه ئې هم درلودل. وروسته ئې له ملتان څخه د پېښور د لنګرکوټ پر خوامخه کړې وه. ده خپل خان لوی عالم نه دی ياد کړئ ، وايي ، چې ما لږ علم حاصل کړی دئ. ښايي د خپل صفت په خپله خوله قايل نه وي. د ده د ژوند زمانه دولسمه (۱۲) هجري پېړۍ ده. اخوند رشيد خپل کتاب "رشيد البيان" په کال (۱۱۲۹ ق =۱۷۱٦م) کي منظوم کړی وو. چي د محرم د مياستي پنځمه وه:

له هجرته زر سل کاله
نهه ويشت نور هم زما لاله

چي دا تېر شو کتاب تم شه
په پنځم د محرم شه (۴)

خو د شعر له رويه به داسي و وايو، چي (دا تېر شو) يعني دا آتاب په ۵ محرم (۱۱۳۰ ق) کي ليکل شوی دئ. دلته نو د ۲۹ م کال پوره کېده او د ۳۰ م کال لومړۍ پنځه ورځي دي. يا داسي په ساده او عامه توګه چي دا کتاب په ۵ م محرم ۱۱۲۹ ق =۲۰ دسمبر ۱۷۱٦م (۵) بشپړ شوی دئ.

اوس نو په دې خبره کي هيڅ شک نه پاتېږي، چي دی په دغه کال ژوندی وو. نور ئې د مړيني او زوکړي په اړه د نورو ډېرو پښتنو ليکوالانو او شاعرانو په شان هر څه په تياره کي دي.

ما يو قبر موندلی دئ، چې ماته د ده ښکاري. ځکه چي هغه ظاهري علامات ئې ټول د ده دي. بس له ما سره هم دغه لوی سند دئ.

په ملتان کي د بهاؤالدين زکريا تر مزار لاندي دوه سړکان دي، د دې دوو سړکانو په ميان کي د حضرت سوهن شهيد (قلعه کهنه قاسم باغ ته په لار کي) يو کوشنی مزار دئ، چي ۱٦ فټه اوږ او ۱۳ فټه پسور لري.(٦) چي د دې سړکانو د کار پر وخت نور کار

شوی دئ، خو دا قبرونه ئې پر خپلو ځایونو پرې ایښې دي. له دې سره نژدې دوه لوی قبرونه او دوه کوچني قبرونه دي. په دې لویو قبرونو کې پر یوه قبر باندي دا کتبه لیکل شوې ده:

"یا الله، بسم الله الرحمن الرحیم، یا رسول الله، زیارت حضرت، پیر صدر رشید المعروف رشید بابا، مصنف کتاب، رشید البیان غزنوي افغانستان "



په دې اړه زه او زما ملګري طاهر جوګیزي نور هم کوشش وکړ. د "مزارات ملتان" ډېر کتابونه مې و لټول، خو د دې قبر په اړه مو څه تر لاسه نه کړل.

یوه ورځ د سرائیکي اخبار "جهوک" ایډیټر، کالم نګار، ادیب او لیکوال ظهور احمد دهریجه سره د ده په دفتر کي مور و لیدل.

ظهور احمد دهریجه ته مي دا کیسه وکړه، نو ده ډېر په تفصیل مور ته داسي و ویل: «چي د ملتان د سړکونو د پراخی لپاره ډي سي (ډپټي کمشنر) نسیم صادق د ملتان ښار قبضې ختمولې، په دې اړه ئې ډېر څه و نړول، کله چي دې سړک ته وار راغلی، نو منصوبه داسي وه، چي دا درې څلور قبرونه به هوار کړل شي او دا دوه سړکان به سره ګډ کړل شي. د ټریفک نظام به سم شي. خو په دې خبره باندي د سرائیکي یو ادیب "شوکت ؟" ماته (ظهور دهریجه) راغلی، چي دا کار به نه پر ېږدو، ځکه چي دلته دوه ډېر نامتو قبرونه دي. که داسي وشي، نو د ملتان د تاریخ یو باب به د همېشه لپاره بند شي، په دې کي یو قبر د سوهن شهید دئ اوبل د افغانستان د یو تاریخي لیکوال دئ، چي اخوند رشید نومېږي. نور خو په دې اړه معلومات نه لرم، مګر د ده پر قبر چي کومه کتبه لیکل شوې ده، دا بې ځایه نه ده او دا دوه درې سوه کاله زوړ قبر دئ. ظهور احمد دهریجه وایي. چي ما د خپل اخبار له لاري د دې مهم خلاف اواز پورته کړ او د سرائیکي ډېر لیکوالان او ادیبان زما او شوکت ملګري شول، موږ (ډي سي) طلب کړلو، زموږ له ملاقاته پس (ډي سي) دا خبره و منله، چي دا قبرونه به نه هواروو، بلکي ښه خوندور به ئې مزین کړو. او ښاوخوا به د سړکانو لاري ور سره و باسو، نو وایي چي دې (ډي سي) هغسي و کړل. د اخوند رشید د مزار زړه کتبه دغسي ورسره کښېښوول سوه او هر څه ئې د سرکار په سرپرستۍ کي نوي کړل شول، چي اوس ئې هر څوک لیدلی او ویلی شي.»

نو غرض دا چي د دې قبر پاته کېده هم د ادیبانو په لاس شوي دي. او اوس ئې هر څوک زیارت کولی شي.

زه په دې نه یم خبر، چي څوک په دې قبر په پښتو ادب کي معلومات لري، یا ئې څه لیکل ور باندي کړي دي، خو کله چي مي په دې اړه له استاد معصوم هوتک



سره اړيکي و نيولې، نو د هغه وينا داوه، چي ليکنه ور باندي وکړه، بس هم دا ضروري دي. د استاد حبيب الله رفيع نوم ئې راته واخيست، چي ښايي هغه ور باندي خبر وي. والله اعلم

دا پوښتنه پر خپل ځای پاتېږي، چي دی له هغه وطنه دلته له مرګه پس څنګه راوړل شو او دفن کړل شو؟ ايا د ده دا وصيت وو او که بل څه؟ پاته سوه پر قبر باندي هغه زړه کتبه، هغه اوس هم پر قبر باندي پرته ده، خو ماته شوې ده. خو هغه هم دومره زړه نه ده، ښايي دا ئې هم له بلي کتبې څخه اخيستې وي.

حوالې:

(۱) عبدالرشيد – رشيد البيان – قلمي نسخه ، زما کتابتون – د پای مخ

(۲) رشاد . عبدالشکور – جغرافيايي يادداښتونه – کندهار چاپ ۲۰۱۱ – ۴۵۴ ، ۵۴۹مخ

(۳) عبدالرشيد – رشيد البيان – قلمي نسخه ، زما کتابتون – د پای مخ

(۴) عبدالرشيد – رشيد البيان – قلمي نسخه ، زما کتابتون – د پای مخ

(۵) هاشمي . عبدالقدوس – تقويم تاريخي – اداره تحقيقات اسلامي اسلام آباد – ۲۸۳مخ

(٦) امتياز حسين شاه – تذکرة اوليا، ملتان – کتب خانه حاجي نياز احمد چاپ – ۱۵۸ مخ، دا زوړ پيمايش دی ، او له سره جوړ شوی دی.

واحد فقيري/ واشنګټن

# د مجروح ځانځاني ښامار ته يو سياسي نظر

(څلرمه برخه)

يوه ورځ د ښار په زړه کي په ستر ميدان کي زيات ښاريان راغونډ سوي وي، لاروی ناڅاپه پر برابر سي. پدې وخت کي لاروی فول ټايم انقلابي دئ او هغه ښاريان داسي مخاطبه وي:

اې ښاريانو! ښه خبر شئ!
ستاسو ستر واکدار بادار خو
تور ښامار دئ
تاسو واړه بندګان ياست، غلامان ياست
د ښامار مار
دا واکدار ستر زمامدار مو همېش تږی دئ د وينو
هسي تږی،
لکه وينو ته چي تږي وي د غرو رغو ليوان ټول
زړه ئې کلک لکه تورکاڼی د بيابان
لکه سندان دئ
که هم وخوري غرونه ـ غرونه ژوندي سري
لوږه ئې لا پسي زيادت کا لا شدت کا
په ليوانو کي ليوه له ورو ورې
په درياب کي پروت نهنګ له تږي تږی
اې ښاريانو!
ورشئ ـ ورشئ!
خپل بادار ته له نژدې نه لږ څه خبر شئ!
هغه ستر ګي چي ذ ده دي، دوه د وينو کټوري دي
هغه ستر ګي د ښامار دي
د بادار هغه منګولي چي قوي دي پولاديني
ستاسو زړونو کي ټومبلي کلکي ښخي
دا منګولي د بلا دي، د ښامار توري بلا دي.
(۱۶۶-۱۶۷)

د وينا پدې برخه کي، د مجروح انقلابي لاروی پر ديکتاتور باندي ښغ په ښغه حمله کوي، ستر ټولواک له ليوه او حيوان سره تشبېه کوي، تور ښامار ئې بولي، د ښار امير غضب لکه وحشي حيوان تل د وينو تږي وي. لوږه ئې نه مړېدونکې وي، د ديکتاتور تېرى او حرص حد او اندازه نه لري.

لاروی خلک دې ته لمسوي، چي د ديکتاتور پر تاريخ او شخصيت باندي يو ځل له سره تجديد نظر وکړي، د ښار د مستبد ټولواک سيرت او اعمال له سره ارزيابي کړي.

لاروی ښاريانو ته وايي چي د ښار تور ښامار ستاسي په زړونو کي خپلي منګولي ښخي کړي دي او د هغه دا منګولي بايد قطع سي.

لاروی د خپل نطق په وروستۍ برخه کې، په جامعه او فرد کې پر دروني او داخلي عنصر باندې ټینګار کوي. دلته لاروی غواړي چې خلګ دېته اړ باسي چې پخپل ګرېوان کې سر کښته کړي او خپل ځان ته وګوري، خپل زړونه پاک کړي، خپل له زړه څخه دړې، حرص، بد خواهي او ځانځاني ښامار راوباسي.

لاروی غواړي چې خلګو ته دا درس ور کړي چې په ژوندانه کې تل خپل مسولیت ومني او د خپلو مشکلاتو مسولیت او پړه پر نورو وا نه چوي، د خپل ځان په انتقاد کې صادق او ریالیسټ واوسي، ځان پخپله اغفال نه کړي.

اې ښاریانو!

ښه خبر شئ!

دا بلا توره بلا چې دننه ناسته په دې ښار ده

له کوم بل پردي هیواده خو راغلې دلته نه ده

دا بلا ده په دې کور کې روزل شوې

له دې سیمې پاڅېدلې

پخپل لاس مو له خپل ځانه راویستلې

په خپل ځان مسلط کړې

دا بلا ستاسو بلا خپله بلا ده

څکه ـ ځکه تاسو هر یو

ښاماران ساتی روزی پټ

په سینو په خپلو زړو کې

چې ښامار نور هم لوی شي زورور شي

خلاصېدای له دې ښامار ه نشي

دا ښامار وژلای نه شي

تر څو تاسو را پا نه څی

دا ښامار پخپلو زړونو کې مړ نه کړی نابود نه کړی

که د نفس بده بلا کړي څوک نابوده

. نو به هله د بلا توري بلا څوک خوراک نه شي

که د خپل زړګي ښامار مو قرباني کړو

نو به هلته تاسو نه شی قرباني د لوی ښامار مار.

(۱۶۷–۱۶۸)

لاروی د یو اګاه مبارز په حیث د یوې ټولنې په پرابلمونو کې د هغې جامعې د داخلي قواوو د میکانیزم، تضادونو، او جوړښت رول تر بل هر شي بارز ګڼي. د یو مسئول مشر په توګه خلګ خپل ځانته متوجه کوي، پرګنې د اجتماعي مسولیت منلو ته رابولي، لاروی بار – بار خلګو ته وایي چې ستاسي نفس او زړونه خراب سوي دي او له همدې سببه توره بلا در باندې مسلطه سوې ده، په اخر کې دا اخطار هم ور کوي چې د جامعې د خلاصون یوازنی لاره دا ده، چې خلګ اول په خپلو زړونو کې ښامار ووژني، څو د لوی ښامار قرباني نه سي.

اې ښاریانو!

لاندې هلته د هغې هسکي ماڼۍ په ژور تل کې

لوی زندان دئ

زندانیان پکې پراته زنځیر تړلي

پاځئ – پاځئ!

زندانیان واړه آزاد کړئ!

زنځیرونه زولني کړئ ماتي – ماتي

د زړګي د ماڼۍ هغه معماران چي شړل شوي

تللي پټ دي چر ته سمځو مغارو کي

دا ماهره معماران بیا راستانه کړئ!

د زړه خونه دوباره کړی پرې آباده

تر څو تاسو د ښامار خوراک نشئ.

(۱۶۹)

لاوري ښاریان انقلاب ته پاروي. ورته وایي چي پاځئ جیلونه مات کړئ او زندانیان ازاد کړئ. ځکه پدې زندانیانو کي د ښار نخبه ګان منورین، هنرمندان او معماران شامل دي. لاوري ورته وایي چي دا معماران بیرته راستانه کړئ، خپل ښار او د خپل زړه خونه پرې آباده کړئ. لاروی د ټولني په ابادولو او باثباته کولو کې د تحصیل کړده او منورینو نقش ته زیات اهمیت ورکوي.

د دې وینا پر وخت د ښار ستر راهب هم هلته په یوه ګوښه کې چپ ولاړ وي او د لاروي ټولي خبرې واوري. راهب د ځان سره په سوچ کي سي او داسي وایي:

دا سړی خو رشتیا مجنون دئ لیوني دی.

ځکه – ځکه

دغه سر د ټول اسرارو

دغه رمز د ټول رمزونو

دغه اسم محضه

هسي – هسي بې پردې بیانول آسان کار نه دئ

زه حیران یم

چي دا رمز د ټول رمزونو ده په څه شان پیدا کړئ؟

دا سړی ګر چي مجنون دئ

خو ښکار یږي له دې هسي بیانونو

چي د حال مقام خاوند دئ

راهب پوه شو

چي دا هسي شان بیان دغه خبري چي مجنون کړي

دا خبري د دې ښار د عالم نه دي

دا د بل جهان آواز دئ

یوه دنیا په رنګېدو ده

یو دفتر د زمانې په ختمېدو دئ

دا خبري همه واړه رسېدلي فرماندار ته

دی ښه پوه وو چي مراد د مجنون څه دئ؟

نو تر خه خندا به نې کړله زهر ناکه

بیا ئې وو ې:

دا سړی خو لیوني دئ

هم بې زوره بې قدر ته

د ښار نظم ته خطر پیښوی نه شي

مګر ورو – ورو

ځیني ځیني د ښار خلګ چي به کله شوه فارغه

د شاقه سختو کارو نه

نو د شپې به په تور تم کي غونډېدل دوی

د مجنون ځیني خبري به ئې پټي یادولې

ګونګوسي به ئې کول پټ

زندانیانو په تورتمو زندانو کې

دا خبرې اورېدلې

په خپل زړه کې يې ساتلې

منتظر آماده ناست وو کوم فرصت ته

(۱۶۸-۱۷۰)

د لاروي دې فصیح او تارخي وینا نه یوازې د ښار د لوی راهب نظر ور بدل کړ، بلکې د نورو ښاریانو په ذهن کې هم د لاروي په برخه کې مثبت نظر مخ پر زیاتېدو سو. دلته حتی د ښار ستر راهب لا وایي، چې دا اسرار او رمزونه داسې ازادنه په عام محضر کې ویل اسان کار نه دئ، د راهب په گومان لاروی د (حال او مقام خاوند) دئ او یقینا دا د بل جهان آواز دئ.

راهب پوهېږي چې د تاریخ یوه دوره مخ پر ختمېدو ده او یو نوی پړاو پیلېږي، د زماني یو دفتر تړل کېږي او یو نوی فصل شروع کېږي او استبداد سقوط کوي. لدې وینا راوروسته، لاروی په ښاریانو کې په یو محبوب او اولسي مشر باندې بدلېږي او حتی زندانیان هم یو فرصت ته انتظار ناست دي. هغوی هم پوهېږي چې اوس یا وروسته به استبدادي نظام له مینځه خي او ډېر ژر به هغوی بیا ازاد سي.

په ارګ کې د دیکتاتور، لاروي، او د آزادۍ د الهې نهايي ملاقات:

د دیکتاتور، د آزادۍ د رب النوعي، او لاروي نهایي ټکر هله پیښ سي چې امیر غضب بالاخره دې ته اړ سي چې لاروی او د آزادۍ الهه خپل دربار ته ور وغواړي. پدې ناسته کې دیکتاتور پوهېږي چې نور يې وخت ختم سوی دئ، دوران يې پای ته رسېدلی دئ او یو سیاسي انقلاب او بدلون راتلونکی دئ.

ستر ټولواک له هغوی څخه پدې غرض پوښتنې کوي، څو د هغوی اصلي هدف، مقصد، او مرام څانته معلوم کړي. لندې دا چې ډېبریف يې کړي(معلومات ور څخه واخلي).

فرماندار لومړی مخ واړاو لاروي ته

په زېږه ترخه آواز يې ورته ووې:

اې پردیسه مسافره!

چې د بل پردي هیواد ته يې راغلی

په دې ښار کې اوسېدلې

موږ پناه تا ته در کړې!

زه خو اورم چې ته خلک رابلې تل

چې د خپل پلرونو نیکونو معبد پرېږدي

پخواني دود رواجونه کړي همه تر پښو لاندي

د زړو خپلو پخوانیو عقایدو نه لاس واخلي

او د دې ګدایي ګري ناشنا پېغلي پرستش ته غاړه کېښېږدي،

دا رشتیا ده؟

(۱۷۲)

دلته دیکتاتور لاوری، لکه سقراط د نویو عقایدو او خدای په معرفي کولو باندې تورنوي، ورته وایي چې ته خلګ له خپل تاریخ او فرهنګه لیري کوې، ته زموږ پخواني فرهنګي رواجونه تر پښو لاندې کوې.

نور بیا...

عصمت الله زهیر

# معاصر پښتو نظم، فکر او تکنیک

## (سهېلي پښتونخوا او کندهار)

یادونه: داموضوع دا اوس د کوټې نړۍ وال کنفرانس کې راکړې وه (معاصر پښتو نظم د یوولسم سپتمبر اغېزې په سهېلي پښتونخوا او کندهار کې) فکر مې دئ، چې وروسته لږ نور کار هم ورباندې وکړم.

(لومړۍ برخه)

په ښکاره توګه او ډېر په جار سره نړۍ اوس دا اعتراف کوي چې د یوولسم سپتمبر (۲۰۰۱م) پېښه د ترهګرۍ مور وه، چې وز ېږول سوه، د جګړې او فساد داسې بلاوې ئې را پیدا کړې، چې هرڅه تر ستونې شوه (کوي) خو ښکارې هیڅ نه .... پر ټوله نړۍ ئې د ترهګرۍ پر خلاف د سولې په لېوالتیا ئې داسې یو ناورین را خپور کړ، چې د مخ په صف کې بې اودسه هغه څوک هم ودرېدل چې خپله خاوره ئې د ترهګرۍ او ترهګرو خالي ګرځولي یا نړۍ والو نومولې دي.

د یوولسم سپتمبر را وروسته د پښتنو ـ افغانانو پر خ وره جګړه تم نه سوه نوره پسې توده هم اوږده سوه، دا جګړه د استعماري او تروریستي ډلو په ګټه ده. هم مذهبي بنیادګرو ډلو ته دلا پیاوړتیا زمینه مساعدوي، د (کار لایل) په فکر سره: «جنګ د دوو غلو ترمنځ جګړې ته وایي، چې د خپل ډار نتوب لکبله ئېغ په ئېغ جنګېدلی نسي لاکن د کلي هلکان دې ته اړ باسي چې وجنګېږي، دا ډول د دا بل کلي دریشي په غاړه چې توپک هم ورسره وي پر یوه او بل د خونخوار و ځناورو په څېر را خوشي کړي.»

د یوولسم سپتمبر پلان د ګریټ ګیم یا ستري بازۍ په پیل کې تشکیل سوی وو او اساسي رول (B52) ته ورکول سوی وو، توره بوږه یا د میوند د غرونو بمبار ئې ببخي جزوي کردارونه څکنه و ګرځېدو، چې (mothr of Bom) یا د بمونو مور هم زموږ پر سپېڅلې

خاوره وازمویل سول، زموږ جنتي وطن ئې د ترهګرۍ د تولید فابریکې وبللې....

افغان – پښتون د تاریخ د اوږدو سوليز خلک پاته سوي دي، د جرګو او مرکو خلک دي، د سیاست، ادب او هنر خلک دي، سیمه او خاوره ئې د جغرافیايي تقسیم پر ته دامن او وروروليۍ خانګو پاته سوې ده ...

دا مهال افغان – پښتون خپله د پردیو ړندې جګړې قرباني او د ریاستي ترهګرۍ پر ژرنده دهل پاته دئ، په واقعیت کې افغان – پښتون ترهګر نه دئ، ترهګري ورباندي په مذهبي او ریاستي بڼو تپل سوې ده....

د یوولسم سپټمبر را وروسته پېښو د تهذیبونو د ټکر فضاء جوړه کړه، مذهبي احساسات په دومره شدت را وپارول سول، چې د ډېرو سنجیده لیکوالو او شاعرانو تخلیقات سمدم بغدادي قاعدې ایسېدلې.

په سیاسي، ادبي، تاریخي او جغرافیايي توګه دا خبره صفا ده، چې پښتون، افغان یو ملت یو قام دئ او دا یو تسلسل دئ د بدن یو غړی چې تپي کيږي روغ بدن ورسره دردېږي او دا درد داسي یو درد دئ، چې نبغ ئې زړه احساسوي... د تېرو پنځو لسیزو په شالید کې دا د پاى دوې لسیزي را وګورو، پېښې، بربادۍ او دربدرۍ را وپلټو مرګونه، چاودني، ځانمرګي، ویرانۍ د ځو غتانو، بدمعاشانو اقتصادي او ټولنیز ظلمونو بېلګي په معاصر پښتو ادبیاتو کي لیدلای خو سو، خو مطمئین کېدلای ځکه نسو، چې د نظریاتي، فکري او سیاسي پلوه ئې برخې تخلیق خالص د تاریاکو یو خوراک خو کېدلای سي، لاکن د دایمي علاج سوب پامېدلای نسي، ولي چې زموږ د تخلیق لویه برخه زموږ تخلیق کوونکو د عقیدو په رڼا کي تخلیق کړه...

د یوولسم سپټمبر را وروسته پېښې او نړۍ وال بدلونونه، اقتصادي حرصمندیو په اسیايي هیوادونو کي د بهرنیو ځواکونو پوځي او استخباراتي فعالیتونه او مرکزونه دې مبارزه کي چا او چا لاسونه سره یو کړل ټول پوهېږو (جګ بابا) او ځلوېښت غله!

خو بده دا وسوه زورورو د خوارو خلکو کورونه په بمانو او باورتو والوزول، خړ پړ خلک، ماشومان او مېرمني ئې په مرمۍ بیده کړل داسي بې وسان چې احتجاج ونکړي نو به څه کوي؟

یوار د امریکا د پورټ لینډ استوګني ارسلا ،کې، اي، ګوین څخه کوم خبریال پوښتلي وه، د احتجاج ګولو کومه ګټه هم سته؟

نو ګوین په جواب کي ورته ویلي وه: «هم دا یو احتجاج خو را پاته دئ او احتجاج کول زموږ حق دئ، موږ ته په کار ده احتجاج وکړو.»

د یوولسم سپټمبر را وروسته د ترهګرۍ په نوم د امن پلي کولو په پلمه د لبرال خونخوار سامراج د خونخوارۍ، وحشت او اقتصادي حرصمندۍ په مقابل کي روان مزاحمت نړۍ وال، ناپیلي لیکوال او دانشور د یوویشتمي پېړۍ مزاحمت نوموي د نوموړي مترقي لیکوال عبدالله ملک په اند: «دا د یوویشتمي پېړۍ مزاحمت دئ، نه چې ترهګري ده. د دا مزاحمت نه کوم رنګ سته نه کوم نسل او مذهب لري، دا ټول عمل چې ترهګري ونومول سول د یوې ړندې جګړې پلمه وه.(۱)»

د نوموړي لیکوال، دانشور فراق ګورګکپوري په اند: «ادب د انسان د احساساتو او خیالاتو ترجمان وي او د انسان احساسات او خیالات د عصر او چاپېریال تابع وي، د زماني او چاپېریال چې څه ډول عصر او ټولنیزې پېښې وي هم هغه ډول به احساسات او خیالات وي او بیا به هغه ډول ادب وي. (۲)»

په عمومي توګه د یوولسم سپتمبر وروسته د ترهګرۍ پر ضد د سولې په پلوي د پردې. رنديږ جګړې منفي او تباه کاره اغېزې پر پښتو ادب په شدت سره احساسېږي، په خصوصیت سره د جګړې ورانکارۍ، خونرېزۍ او د وحشت اغېزې پر پښتو ناول او نظم باندې ښې څرګندې او ژورې دي...

ادب د تاریخ په څېر د څو پرېشانو او منتشرو پېښو ټولګه نه ده، چې د ځینو ټاکلو بندیزونو زنار (زنهار) په غاړه ګرځوي، د جان پال سارتر په اند: ادیب دې خپل تخلیقي زیاره یوه داسې وسله وپاموي، چې انسان ئې د بدۍ پر ضد په جګړه کې وکاروي. (۳)

د افغان ـ پښتون پرخاوره د نیمې پېړۍ یوه رنده جګړه روانه ده، چې تر اوسه ئې څو نسلونه قرباني سوي، خو جګړه لا روانه ده، جګړه اصل کې اروايي جګړه ده چې په بڼو ـ بڼو تېل کیږي، په دې جګړه کې که له یوې خوا سواد داره. په فکري توګه بیداره او مسلکي خلک قرباني سوي دي، نو بل اړخ ته ئې په زیات شمېر مېرمنې د فشار. ساه تنګۍ او ذهنې ناارامتیا شکایت کوي او په ماشومانو کې د سپینې وينې د کمښت شکایت مخ پر زیاتیدو دئ.

موږ پر خپله خاوره امن غواړو او امن له هغه چا غواړو، چې موږ پښتانه ـ افغانان ئې د ټوپک او وحشت په زور محاصره کړي او رنده جګړه ئې را باندې تپلې ده.

د ښاغلي درویش درانې نظم (دامن کښتۍ) د یوولسم سپتمبر تر خونخوارۍ او ورانکارۍ د ترهګرۍ پر خلاف د امن پلې کولو پر عمل د شک ګوته پورته کوي. د خلکو رښتوني اندېښنې په یقین بدلیږي دا ټول عمل د افغان ـ پښتون پر خاوره پردۍ رندې جګړې ته د دوام ورکولو او د دې خاوري د قدرتې شتمنیو د لوټلو به نوموي:

(دامن کښتۍ) نظم پیل دا ډول کیږي:

جنګ له موږه موږ له جنګه یو ډېر ستړي<br>
پر یوه خاوره مو تېر کړي دي دیرش کاله

وخـت بـدلیږي زیـاتي امـن را روان دئ<br>
په وطـن کـې یو موږ ټول ورتـه خوشـحاله

را وهـي پـه سـمندر کـې خپلـه لاره<br>
په اوبو کې یې کښتۍ لکه نهنګ ځي

هـم توپـان پـه ادب اړوي تـرې مخـه<br>
هم ځپې لار ور کوي او ترې په څنګ ځي

په کښتۍ کې چې یې دی ځای پرځای کړی<br>
تـر حد زیـات دارزښت ور هغـه سامان دئ

په وطـن کـې یو موږ ټول ورتـه خوشـحاله<br>
وخـت بـدلیږي زیـاتي امـن را روان دئ

د یورپې یونین د (۱۵) هیوادونو استازو په برسلز کې په اختتامي اجلاس کې دا اعلامیه خپره کړه: «چې

امریکا ته دي د ۱۱ سپټمبر (۲۰۰۱م) د نړۍ والي ترهګرۍ جواب ویلو اختیار دي د بین الملل د ۱۲ سپتمبر ۲۰۰۱م د قرار داد نمبر ۱۳۶۸ اړوند دي ور کول سي. په دغه اړوند دي امریکا د نړۍ والو ادارو قوانین د پامه نه اچوي، نه دي امریکا په خپل سر خپلسري اقدامات او عملیات کوي ....» په دا ډول خپلسرو کړونو امریکا د کوم هیواد د حاکمیت اعلی پر خلاف اقدامات عملي کولای سي او بیا به هیڅ یو هیواد یا نړۍ واله اداره امریکا نړۍ وال قوانینو ته اماده نکړي.(۴)

اوس چي (دامن کښتی) شاعر پر خپله سپېڅلې خاوره د شیطان پر لکۍ سپاره ډلي – ډلي زورور پر انساني کوپړیو په رقص وینې نو دامن کښتی په ګردابونو او د وینو په سیندونو کي ورته را روانه ښکاري لکه چي وایي:

را روان دی خو په دې نو خبر نه دی
چي ترموږه راتګ څومره خواري غواړي
چي زموږ هیواد ته شي راوړي دننه
له پردیو به هغه راهداري غواړي

چي څه شر وي له کوم ځینز سره تړلی
هغه مومي اجازت ښه په اسانه

خو چي موږ ته یې څه ګټه رسیدای سي
د هغه را تېرول وي ډېر په ګرانه

او دامن په کښتی کي چي کوم مال دی
په هغه کي خو بیا دوی ته سخت تاوان دی

په وطن کي یو موږ ټول ورته خوشحاله
وخت بدلیږي زیاتي امن را روان دی

موږ پر خپله خاوره امن هم د خپل مظلومیت په اشتهار بازي سره غواړو. د یوولسم سپتمبر را وروسته د پښتنو – افغانانو پر خاوره په شعوري توګه د مذهبي تصادم یو خطرناک عمل تر سترګو کیږي.

د یوولسم سپتمبر را وروسته د نړۍ ټول زورور قوتونو خپل قوت او طاقت د اسامه بن لادن په نیولو، وژلو او د القاعده شبکې د منځه وړلو لپاره وکارولو، چي د رندې جګړې ډګر ئې افغانستان وګرځولو د ترهګرۍ پر خلاف په افغانستان کي د زورورو قوتونو مهم هدف القاعده او طالب شاهي د منځه وړل وه، ځکه د دوی په اند طالبان او اسامه بن لادن د یوې سیکې دوه روخه وه.

نور بیا...

ناصر ریشا

# کوم هنري یا ادبي اثر ته (شهکار) ویلای سو؟

موږ اکثراً د خپلو دوستانو د خوشحاله کولو یا هڅوني په خاطر د هغوی ادبي او هنري اثار په لویو صفتونو نازوو. که څه هم نه یوه پلوه د یو چا تشویقول او د هغه زړه خوشحاله کول ښه کار دئ. خوله بلي خوا په صفت کي افراط. د اصلاح او پرمختګ مخه نیسي او معیار خوړمنوي.

معقوله لار نې دا ده، چي څوک خپل قضاوت پر واقعیت بنا کړي. یوله هغو افراطي صفتونو څخه، چي زه څو واره په پورتني کانټکسټ کي پر پېښ سوی یم. د (شهکار) کلمه ده چي، له بده مرغه خیني ئې په خورا خلاص لاس کاروي. په لاندي څو کرښو کي مي هڅه کړې ده. چي پر (شهکار) لږ رڼا واچوم.

وار ذواره دا خبره په یاد ولرئ، چي شهکار / شاکار masterpiece یو رسمي لقب نه دئ. چي یوازي د کوم منلي نهاد له خوا و یوه هنري یا ادبي اثر ته ورکول سي؛ بلکي هر څوک دا صفت کارولائ سي. هو خیني شرایط او ممیزات سته، چي یو اثر باید تر هغه فلټر تېر سي او وروسته د (شهکار) د خطاب مستحق سي.

معمولا یو شهکار اثر په په خپله معاصره زمانه کي چندان اهمیت نه تر لاسه کوي یا ئې خلک نه سي درکولای. خو کلونه یا پېړۍ وروسته خپل کمال او جمال تر پخوا په ډېر زور، ښکاره کړي.

یو اثر هغه وخت (شهکار) بللای سو، چي لاندي شپږ عمده صفات ولري:

۱ـ په کیفیت کي نوی، مستثنی او فوق العاده وي. (د فوق العاده هنري استعداد، کمال یا مهارت محصول وي. عادي او معمولي اثر نه. بلکي منحصر به فرد وي، بې مثاله وي. نوی او تازه به وي)

۲ـ د هري زمانې له پاره وي (د زمان دقید تر ازمایښت روغ وتلای سي، په نن او سبا دواړو کي چلېدای سي باید له خانه وپوښتو چي آیا دا اثر دوې پیړۍ وروسته هم د خلګو هنري تنده ور ماتولای سي؟ ولي چي ډېر هنري او ادبي تخلیقات تر یوه معین وخته خوند او رنګ لري. چي د وخت سهان کرار ـ کرار دواړه ور پیکه کړي، خو یو واقعي شهکار اثر که نن کیف کوي څو قرنه وروسته ئې هم کوي. تاسو د مونالیزا تابلو وګورئ یا د ماکسیم ګورکي د مور اثر درواخلئ.)

۳ـ احساسات در وښوروي او تصور در وتخنوي.

۴ـ فکر ته مو تحرک در کړي او ستاسي په یاد کي پاته سي.

۵ـ کافي سوچ او وخت پر لګول سوی وي (تلوار نه وي پر سوی. بلکي د ژور فکر او زیار محصول وي. د پنځونکي بشپړ رضایت ئې باید حاصل کړی وي ـ بشپړ او تکمیل وي.)

۶ـ په خپله رشته کي باید د راتلونکو نسلونو لپاره یو نوی میسر وټاکي.

په لنډ ډول ویلای سو، چي شهکار هغه فوق العاده او بې مثاله اثر دئ، چي جغرافیوي حدود مات کړي، د یوې ټولني نه، بلکي د بېلو ټولنو تر منځ د بشریت مشترک تار پیدا او په تخلیقي کمال او هنري جمال ئې په استادانه مهارت داسي وشرنګوي چي د انسان فکر او احساس متاثر کړي. او آزانګې ئې تر پیړیو پر ټوله دنیا په انساني حافظو کي په مدار کي پاته سي.

سردارولي پښتون زوی

# کوټه، د کندهار هېره فرهنګي حوزه

(دوو لسمه برخه)

د میوند له تاریخي ماتي سره برتانوي سیاست ته په هند کي دا ستره موضوع مخ ته پرته وه، چي د هند شمال کي پراختیا پر کوم خای ودروي. لومړی ډلي ټینګار کاوه چي تړلی سرحد (Close Border System) حل لاره ده، دې ډلي د اباسین سیند (Indus River) ته د هند د طبعي سرحد په سترګه کتل او له دې سرحد شاته ستنېدو ته تیار ول. بلي ډلي بیا د مخکښي پالیسۍ (Forward Policy) نظر ور کاوه چي ستره برتانیه د شمال له لوري چي څومره پرمختګ کولای سي و دي ئې کړي. آن ځینو خو د آمو سیند د هند طبعي سرحد باله[*].

د هند مغروره او سرټمبه مرستیال واکمن یا وایسرا ا باروون لېټن ا ته په دې اړه دېري لاري چاري پرتې وې: لومړی دا چي افغانستان دي مستقیماً په برتانیه پوري وتړل سي، دوهم دا چي هغه دي یو غښتلی او خپلواک ملګری کړای سي، او دریم دا چي هغه دي تجزیه او پر څو مستقلو برخو ووېشل سي.

لندن څکه دریمه لار خوښه کړل چي دې کار نه ډېر خرڅ غوښت او نه دومره اوږده پروسه وه. لېټن ولیکل:

"زه په خاني توګه په دې باوري یم چي زموږ د تلپاته ګټو په خاطر د افغانستان د ستونزي وروستۍ چاره د دې هیواد د جوړ کړي سیاسي یووالي ماتول او تجزیه ده." [د ځینو لیکونو څخه ښکاري چي دا نظر په اصل کي د محافظه کار ګوند وو، پښتون زوی].

. لېټن د ۱۸۸۰ع کال د جنوري پر (؟) کرین بروک ته د خپل یو مخفي لیک په ترڅ کي ټینګار کړی وو، چي : "هرات او سیستان دي ایران ته وسپارل سي ...

[*] دا انګریزانو د مخکښي پالیسۍ غوښتنه دا وه چي هر څه کېږي دوی باید پرې نږدي چي روسان د هند لوېي وچي ته ورسي او ګټي ئې وګواښي. څکه ئې وغوښتل چي مخه ئې په افغانستان کي ډب کړي او جنګ ورسره په افغانستان کي وکړي. همدې پالیسۍ له مخه د دوی نظامي، سیاسي او اقتصادي ستراتیژستانو پریکړه کړي وه چي باید د روسانو په وړاندي د سلیمان او هندوکش د غرونو دېوال او د غزني، کابل او جلال آباد مثلث د دفاعي سنګر په توګه وکاروي. دا کار د نیابتي جګړې یو کلاسیک شکل دئ. دوې پېړۍ په افغانستان کي د بهرنیانو مداخله. د ډیوډ لاین لیکنه (د جعفر هاند ژباړه).

په کابل او کندهار کې دې د انگرېزانو تر څارنې لاندې دوه بېلابېل دولتونه جوړ سي ایعنې کندهار به برتانیې ته پاتېږي او کابل به کوم سردار ته، په داسې حال کې چې دواړه به تر برتانوي پالنې لاندې راځي خو د هرات په هکله ئې پرېکړه وکړه، چې هغه به په څو شرطونو ایران ته ورکول کېږي، پښتون زوی اپښین، سیوی او کورمه دې مستقیماً تر برتانوي کنټرول لاندې راسي، او د آمو ولایت بر خلیک دې وروسته وټاکل سي ..." دا چې د انگرېز په وړاندې د افغانانو پرله پسې پاڅونونه وسول، لېټن نور هم دې کار ته لېوني کېده، خو لندن کې د محافظه کار دولت ځای لیبرال گلاډ سټون ونیو او دا پرېکړه لغوه سوه، لیبرال گوند له افغانستانه د ژمي تر مخه د خپل پوځ د شرافتمندانه ایستنې ژمنه وکړه[15]. بلې خواته د سلطنتي کهول څخه عبدالرحمن خان د شمال څخه او ایوب خان د هرات څخه د کابل د نیولو پلان لاره، خو انگرېزانو عبدالرحمن خان خکه غوره کړ چې له لوی کندهاره تېر سو او هغه ئې «د کابل او ورپوري سیمو» د امیر په توگه رسماً ومانه، څکه چې د ۱۸۸۰ع کال په مې کې د برتانوي استازي او د افغانستان په چارو کې مدبر سیاسي مامور الیپل گریفن اسره په خبرو کې عبدالرحمن خان معلومات غوښتي ول چې:

"الف: زما تر واک لاندې سیمو پولې به تر کومه خایه وي (یعنې څومره افغانستان راکول کېږي؟)
ب: آیا کندهار به هم په هغه کې شامل وي که یا؟"

[15] وحشي پوله (د شمال لوېدیځ سرحد د صوبې حال) جولز سټوار ژ. سټن خپرندوی، ۲۰۰۷ع کال.

گریفن ورته ولیکل:

"چې د کندهار پراخه سیمه د کوم بل واکمن په واک کې ور کول سوې ده، حال دا چې د پښین او سیوی اولسوالی د برتانیې تر همېشني کنټرول لاندې راغلي دي (له دې ښکاري چې برتانویان ددې سیمو په ارزښت ښه پوهېدل) عبدالرحمن خان ولیکل، چې دی د هغه افغانستان د ورسپارنې څخه ډېر خوښ دئ، چې حدود ئې د امیر دوست محمد خان سره د لاسلیک سوي تړون پر بنسټ تثبیت سوي وو[16]".

ریپن (نوی وایسرا) د عبدالرحمن خان د دې نامشخصې ځرګندونې څخه ډېر خوښ سو او هرینګټن ته ئې ولیکل چې: "دا کفایت کوي چې نوموړی (عبدالرحمن خان) زموږ په دې اراده پوهېږي چې موږ

[16] د امیر دوست محمد خان سره دوه تړونه لاسلیک سوي وو، لومړی د ۱۸۵۵ع کال تړون چې په هغه کې کندهار ورځخه بېل کړای سوی او دوهم د ۱۸۵۷ کال تړون، چې په هغه کې کندهار د افغانستان سره بیرته ملحق سوی وو. مهم ټکی دا دئ، چې لومړنی تړون دایمي او دوهم تړون پر ته له یوې مادې څخه موقتي وو. نو له دې نه ثابتېږي چې عبدالرحمن خان په ځیرکی سره د کندهار د اخیستو څخه تېر سو، که نه د هرات د اخیستني له اشارې سره به ئې د کندهار ذکر یا د ۱۸۵۷ع کال د تړون یادونه هم کړې وای او دا بېله شکه یو ځیرکانه تجاهل وو. امیر ته په دغه وخت کې رپوټ رسیدلی وو چې د انگریزانو یو پوځ د بولان په دره کې را تېر سوی او غواړي چې کندهار ونیسي. که څه هم چې امیر پخپله دا رپوټونه بې اساسه بللي ول، مگر ځرنگه چې انگریزانو په کوټه کې دایمي نمایندگي پرانیستلې او هغه ښار ئې په ریښتیا هم اشغال کړی وو، نو له امیر سره دا اندېښنه پیدا سوه چې د کوټې د ښار اشغال د کندهار او هرات د ښارونو د اشغال پیلامه ده. وه گورئ: British India، ۳۳۵مخ

د برتانوي پوځ توپچي ټولی د کندهار پخواني ارگ کي، عکاس: جان برگ



کندهار ده ته ځکه نه ورکوو، چې د هغه له پاره يو بل پلان لرو". وايسرای په کابل کې ستيوارټ ته واک ورکړ، چې عبدالرحمن د کابل او ورپورو سيمو د امير په توگه رسماً ومني او په دې ډول انگرېز وتوانيد چې له همدې ملاتړه په افغانستان کې خپله ستره لوبه (د گريټ بريټيش گيم [17]) پيل کړي[18].

د درېيمي مسئلې حل يعني د کندهار راتلونکې برخليک ډېره موده ونځنډېدئ، ځکه برتانوي جنرالانو

[17] د ستري لوبې اصطلاح په ۱۹ پېړۍ کې د تزاري روسيې او انگليس امپراطورۍ ترمنځ د سياسي دسيسو، نظامي او ديپلوماتيکو سياليو لپاره کېده، چې دغه اصطلاح بيا د لومړي ځل لپاره يو انگليسي افسر دارتور کانولي په نوم شخص وکاروله. چې۱۸۴۲ع کال د جون په مياشت کې د بخارا په مرکز کې د کرنيل چارلزاستودارت سره يوځای اعدام سو. (انگرېزي ويکيپېډيا)

[18] د بده مرغه د عبدالرحمن دړو نيمگړ تياوو د افغانستان مخکنې چوکاټ مات او ملي گټې ئې خاوري کړې يعني: د سياسي مقاومت له لاسه ورکول؛ د برتانيې د بدل سوي سياست ځخه بې خبري؛ د انگرېزانو د خطرناک او ضعيف سوي حالت ځخه گټه نه اخيستل؛ همدا وجه وه چې هغه د افغانستان پر مخکنۍ بشپړتيا ټينگار ونه کړ، که نه بايد د افغانستان سره ئې د کندهار، هرات، خيبر، کورمي، سيبۍ او پښين بيرته الحاق ته ليچې نغښتي وای. خو تاريخ کې بيا د نن د تفکر طرز، سطحه، سويه او کلتور د زړگونو او سلگونو کلونو پخوا له پاچاهانو او روڼ اندو ځخه نسو غوښتلای. ځکه هغوي د هغه وخت د کلتور او باورونو سره سم خپل کار کړی دئ، نو موږ اږ يو د هغه وخت په سطحه او سويه کې ځان ودروو او بيا قضاوت وکړو، د احمد شا بابا تر وفات وروسته گنو واکمنو په نوبت-نوبت له خيبره تر سنده ځمکه بار، بار پلورلې او هڅه ئې کړې ددې تجارت له لارې د کابل تخت وگټي، امير ته هم هغه ميراث ورپاته وو، بلې خوا ته که امير روس ته لاس ورکولای انگريز افغانستان خواړه، او که انگريز ته ئې لاس ورکاوه روس خواړه، او که دواړه ئې خفه کولای، ښايي دواړه مخکې راغلي وای او که بو ئې انتخابولای ځوک به ئې انتخابوه؟ افغانستان دا مهال د تجزيې له لوی خطر سره مخامخ و، هيڅ لاره نه وه، ښايي دا به د امير عبدالرحمن تدبيري مشري وه چې دغه مهال ئې دغه راپاته افغانستان راوژغوره؟ تللی افغانستان عملاً له پخوا د بريتانوي هند برخه وه، شخصا زما له نظره امير د ډيورنډ د داغ باوجود يو واحد افغانستان وژغورئ.

د مهم ستراتیژیکي دریځ په وجه د کندهار تخلیه نه غوښته، په داسې حال کې چې ملکي او سیاسي افسرانو د کندهار مالي رسیدګۍ د هغه تر ستراتیژیکي اهمیت درنه او ملا ماتوونکې ګڼله. وایسرای د دې ستونزې د هوارولو پر بکړه د لندن څخه وغوښته او د ۱۸۸۰ع کال د سپټمبر پر شپږمه ئې د هند د وزیر څخه وپوښتل، چې: "آیا تاسې غواړئ، چې د کندهار څخه مور په بشپړ ډول ووزو او هغه د کوم بدلون څخه پرته بیرته د افغانستان سره یو ځای کړل سي؟ زه خو په خپله د همداسې ګام اخیستو پلوی یم..." د هند وزیر د سپټمبر پر نهمه تلګرامي ځواب ورکړ، چې: "مور د پخوا په څېر د کندهار د بشپړې او بېړنۍ تخلیې په اندېښنه کې یو او که عبدالرحمن / هغه حکومت هم غواړي نو دا به ښه خبره وي، چې هغه بیرته د افغانستان سره یو ځای کړل سي. مور فرصت او آینده ټول تا ته درسپارو خو د پښین او سیوی د راګرځولو مفکوره باید درسره وي"[۰].

د میوند تاریخي ماتې او پورتنیو عواملو له امله څه موده نور هم همدغسې کش راکش کېدئ او کابینه نور نو ددې اختلاف او بې تصمیمۍ څخه ډېره ستومانه سوې وه، بلې خواته د وایسرای او امیر تر منځ د کندهار په اړه مکاتبې پیل سوې؛ څو امیر خبر کړای سو، چې برتانوي پوځیان به د ۱۸۸۱ع کال د اپریل تر پایه له کندهاره ووزي. څکه په لندن کې پارلمان د مارچ پر ۲۴-۲۵ په ۱۲۰ آرایو سره د کندهار تخلیه رسماً منظور او پاس کړه. برتانوي پوځ د پروګرام له مخه د ۱۸۸۱ع کال د اپریل تر ۲۷ له کندهاره ووت او هغه ئې عبدالرحمن خان ته وسپارئ. د برتانیې بیرغ د یوویشت توپونو په سلامۍ سره راکښته او انګرېزان او افغانان دواړه په دې توګه د مبتلا مصیبته خلاص سول، خو دا چې د کندهار ځینې برخې لکه سیوی، کوټه، چاغی، ږوب، پښین، چمن ... د انګرېزانو سره پاته سول، مانا دا چې هغوی نیم کندهار په خپله واکمنۍ کې مدغم او له افغانستانه بېل کړ. په داسې حال کې چې امیر عبدالرحمن خان د مرکزي کندهار په وړیا اخیستو سره دومره خوشحاله سو، چې د پاته کندهار غوښتنه ئې (د عادت له مخه) هېره کړه.

نور بیا ...

---

لندن په خپل دې نرمښت سره روسیې ته خپله په اصطلاح سوله ییزه تګلاره هم په نظر کې ورکول، څکه روسیې په کندهار کې د برتانیې والی نه خوښاوه، کټ مټ لکه برتانویان چې په مرو کې د روسانو شتون وار خطا کړي ول. د روسیې د نرمولو په خاطر آن لندن د پښین او سیوی تخلیې ته هم چمتووالی وښود، خو کابینه په دې اړوند پر دوو برخو وویشل سوه. نارتبروک او نورو د پښین او سیوی په شمول د ټول کندهار تخلیه غوښته حال دا چې هرینګټن بېطرفانه دریځ درلود خو صدراعظم (ګلېډسټن) بې تفاوته وو. عیناً اختلاف د وایسرا (ریپن) په ملکي شورا کې هم روان وو لاکن ریپن د کندهار پر تخلیه او د پښین او سیوی پر نیو نه ټینګ وو. وګورئ: رشتیا. سید قاسم. افغانستان در قرن نزده. سلواغه. ۱۳۴۶. دریم چاپ. کابل.

پورته کتاب

محمدابراهیم سپېڅلی

# کلیوال شاعر اختر محمد دلسوخته

په عمر سپین ږیری وو، لیکن فکر، طبیعت او راتلونکي ته ښې هیلې ئې ځواني وې.

هیڅکله ئې په کندهار کي یوه مشاعره او ادبي ناسته نه قضاء کوله.

که څه هم کور ئې په ارغنداب واسوالۍ کي وو، لیکن په مشاعرو او ادبي ناستو کي به ئې تر ناوخته پوري ونډه اخیسته. ډېر خاکسار، انسانپال او کلیوال پښتون وو.

زه د ده له شعرونو سره (دارغند دڅپو ژبه) ادبي تذکره، کندهار مجله او طلوع افغان ورځپانه کي اشنا وم.

خو د ښو اخلاقو دغه انسان مي په ۱۳۸۲ کال کي په لومړي ځل د کندهار د اطلاعاتو او کلتور په ریاست کي ولیدی.

له لیدولو سره سم ئې داسي ښه اولسي کلیوالي مجلس رأسره کاوه، تا به ویل له ډېره وخته سره پېژنو.

اصلي نوم ئې اختر محمد وو، خو په شعرونو کي ئې له ځانه سره د (دلسوخته) تخلص یادوی.

په کال ۱۳۲۵ لمریز د کندهار د ارغنداب په شاعرانه سیمه کي زېږېدلی وو.

د عمر په شل کلنی کي ئې د شعر ویلو ډګر ته مخه کړې وه.

اختر محمد (دلسوخته) لیک او لوست نه وکړی، خپل شعرونه ئې تر جوړولو وروسته په ریکارډر (ټیپ) کي ثبتول، بیا به ئې په کلي کي یو لوستی ځوان پیدا کوی او هغه به له ټیپ څخه د ده ثبت سوي شعرونه د کاغذ پر مخ لیکل.

خدای بخښلي دلسوخته یو وخت د مرګې په ترخ کي راته ویلي وه، په زرګونه شعرونه لري، لیکن د یوچا له ښه کتلو وروسته به ئې چاپوي.

د دلسوخته یوه بله ځانګړتیا داوه، چي په اکثره مشاعرو کي به ئې شعرونه في البدیهه د سټیج پر سر جوړول او په خینو شعرونو کي به ئې د طنز مالګه هم ګډه وله.

د مرحوم دلسوخته شاعري د ده په څېر کلیوالي رنګ لري. همدا سبب دی، چي تر ډېره په کلیوالو باندارونو کي ئې سیمه ییز سندرغاړي له سیمه ییزي موسیقۍ سره په مینه - مینه وایي.

هغه مهال (۱۳۸۲) چي زه د طلوع افغان ورځپاڼي د مرستیالۍ تر څنګ د یاد اخبار د ادبي پاڼي چلوونکی هم وم، نو دلسوخته به راته خپل نوي شعرونه په اونۍ کي د چاپ لپاره یو ځل خامخا راوړل او ادبي پاڼه به ئې له ځان سره کلي ته وړل، هلته به ئې له لوستو ځوانانو

غوښتل، چې په پانه کې خپاره سوي شعرونه او ادبي توکي ورته ولولي.

که په کومه مشاعره کي به ئې نوبت وخندېدی، نو هيڅکله به ئې د خينو تلواري شاعرانو په ډول خوا نه بدوله او پر خپل نوبت به ئې په خندانه څېره شعرونه د ستېج پر سر په ځانګړي کليوالي انداز ويل.

د کندهار د ټولو ليکوالانو او شاعرانو سره ئې ښه راشه درشه درلوده او د مشاعرې هر ګډونوال هڅه کول، د ده شعرونه د ستېج پر سر په يوه ځانګړي انداز واوري.

د ده شعرونو ته تل په مشاعرو کي د ګډونوالو ځوا زياتي چکچکي کېدلې.

دلسوخته به ويل: «زيات شعرونه ئې په هيواد کي د روانو ناخوالو او جنګونو له امله له منځه تللي دي.»

هغه وخت چي خدای بخښلی علامه رشاد بابا کندهار ته (کندهار د تاريخ په اوږدو کي) سمينار ته تشريف راوړی وو، نو مرحوم دلسوخته به ډېره هڅه کوله، چي د علامه بابا ځنګ ته نږدې کښېني او خپل شعرونه ورته ووايي.

علامه بابا به ځوانانو ته ويل: «هڅه وکړئ، د دلسوخته شعرونه په يوه ټولګه کي راټول کړئ.» مګر تراوسه لا د دوی شعرونه په يوې مجموعې کي د چاپ انتظار کوي، خو په کال (۱۳۹۲) کي د کندهار پوهنتون د ښوونې او روزنې پوهنځي د پښتو ادبياتو د ځانګي يو محصل د اخترمحمد (دلسوخته) د شعرونو په اړه پر مونوګراف هم کار کاوه خو افسوس!!! چي اخترمحمد دلسوخته په همدغه کال د ورپېښې ناروغۍ له امله د(۶۶) کالو په عمر خپل ابدي کورته سفر وکړ.

مرحوم دلسوخته به د ادبي ناستو ترڅنګ اکثره سيمه ييزي او نړۍ والي راډيوګاني هم تعقيبولې او په يو کومه سيمه ييزه راډويو کي، چي به ئې کله ناکله د نه خپرېدو وړ څه اورېدلي وه، خورا به ئې زړه زهيرېدی او ماته بې ويل: «دامو راډيوګاني سولي، چي هرڅه ئې زړه غواړي هغه خپروي.»

داهم د مرحوم اخترمحمد دلسوخته د ارواح خوښۍ په خاطر د دوی يوشعر له تاسي درنو لوستونکو سره هم شريکوم.

چي پر سر يې د غمونو باران وسي
هغه زړه، چي د پښتون وي تنګ به نه سي

خپل بادار ته به په هسک مغزي ولاړ وي
هر دښمن ته به خنجر د لړمانه سي

افغانانو سبا کړي ترخې ورځې
تېر تاريخ تې که په غور نظر وسي

هر جابر يې دی په يو وار پرې ايستلی
سل کلونه که تېر ېږي، هېر به يې نه سي

د خپل دين او د وطن ازادي غواړي
هر افغان به شين زمری، دخپل ځنګله سي

محمد نبي سلطاني

# د خوشحال خان خټک نوې پخوانۍ طب نامه

# د نذیر احمد تائي یو ګټور زیار

یاد کتاب د حاجي نذیر احمد تائي د زیار او هڅو ثمره ده، چې د نیکه او انا او بچه خپرونکي ادارې په مالي لګښت چاپ سوئ، د دې ادارې مشري څوان فرهنګپال ( محمد الله تور نپال بابی ) کوي، چې تر دې مخکي ئې هم دوه نور کتابونه چاپ کړي. یو ئې د کندهار د سیمي د نوموتي لیکوال ډاکتر عبدالرازق پالوال (وګړي دوږخیان دي سړیان هم لا) او بل ئې د لیکوال او ژورنالیست صالح محمد صالح د ( ارغند د څپو ژبه ) اول ټوک د کندهاري شاعرانو تذکره ده او وروستی چاپ کتاب ئې همدا اثر (د خوشحال خان خټک نوې پخوانۍ طب نامه) ده، چې د ستر خوشحال خټک د مړیني د (۳۳۶) تلین په یاد لیکل سوئ او د (۳۳۸) تلین په یاد چاپ سوئ، چې د بیا چاپ حقوق ئې د لیکوال سره خوندي دي.

پر کتاب ( د خوشال قدر که اوس پر هیڅا نسته ) تر سرلیک لاندي د کندهار د اطلاعاتو او کلتور پخواني رئیس (ښاغلي حضرت ولي هوتک) دوه مخه سریزه کښلې، د خوشحال خان خټک پر شخصیت، د اثارو پر څانګړتیا او د دې کتاب پر ارزښت ئې لنډې خبرې کړي.

پوهاند ډاکتر عبدالواحد وثق د (تقریظ) تر سرلیک لاندي لومړۍ خوښي څرکنده کړې چې په هیواد کي د مطالعې مینه وال زیات دي، په دوهم قدم کي ئې د یو ناني طبابت په برخه کي د تائي صاحب هڅې، چې د دې طبابت د مینه والو لپاره ئې دا کتاب چمتو کړی او ستایلی، په دریم قدم کي ئې دا کتاب نه یوازي د عامو خلکو، یو ناني طبیبانو لپاره، بلکي د عصري طبیبانو لپاره ئې هم د دې کتاب مطالعه ګټوره بللې ده.

پر کتاب (سل دي ومره یو دي مه مره، سرنۍ خبري، نوري خبري، دې کتاب ته د چاپ بیا اړتیا، مننلیک، د طب تعریف او د طبابت علم ابتدا) تر سرلیک لاندي د لیکوال خبري دي، چې د کتاب د چاپ او د کتاب د چاپونکي (تور نپال بابي)، د دې کتاب پر ارزښت، د نورو کتابو د ساتلو وړاندیز، د چور او تالان څخه ئې ژغورل، د خوشحال خټک د حق د ادايني، د دې کتاب د چاپ پر اړتیا، د طب نامې د بېلا بېلو نسخو پر توپیر، سمون تصحیح او پر تلنه ړغېدلی دئ.

کتاب پرته له سر لوستني او یادانبتو پر څلورو برخو وبشل سوی:

لومړۍ برخه ئې معالجوي طب، دوهمه برخه ئې وقایوي طب، دریمه برخه ئې په تېره یوه نیمه پېړۍ کي بیا تر دم ګړیه د کندهاري طبیبانو تذکرو او څلرمه برخه ئې د لغاتو معنا، تشریح، د طبي بوټو او ناروغیو پېژندني، انځورونو او د لیکوال پېژندني ته ځانګړې سوې ده.

د کتاب لومړۍ برخه د خوشال خان خټک طب نامه ده، چي په (۱۳۴۵هـق) کال کي د پښتو ټولني لخوا د (خوشحال خان خټک طب نامه) تر سرلیک لاندي په مجهوله توګه ټول ټال په (۵۴) مخو کي، چي نه ئې معالجوي او نه ئې وقایوي طب معلوم دئ، ګډه وډه نسخه چاپ سوې ده.

تائي (۷۰) اویا طبي نسخې اضافه د خوشال خټک په نورو اثارو کي موندلي او پر کتاب (طب نامه) ئې اضافه کړي دي، چي (۹۲) دو نوي معالجوي طب، (۲۲) وقایوي طب او (۹) د ده خپلي نسخې دي، چي د کندهاري طبیبانو څخه ئې د (د بدن د ډنګرتیا، د ځنګانه د درد، د بدن د طاقت، د ستوني د درد، د اعصابو دارامتیا، د شکري د ناروغۍ دارو او نور په لیکلي ډول نسخې اخستي او بیا ئې د خوشال خان خټک د نظمو د بحر مطابق په نظم اړولي.

د تائي لومړی نوښت په دې کي دئ، چي د فلیسوف شاعر خوشحال خان خټک طبي نسخې ئې تجزیه کړي یعني د معالجوي طب نسخې ئې جلا او د وقایوي طب نسخې جلا کړي، چي دا نوښت تر دې مهاله هیچا نه دئ کړی.

د تائي دوهم کار په دې د قدر او ستایلو وړ دئ، چي دا طب نامه ئې د له منځه تلو څخه وژغورله. د ژغولو پر ځنګ ئې د (زما سوغات) تر سرلیک لاندي (۹) نه نسخې نوري وراضافه کړې چي په اوسني وخت کي ورته اړتیا وه، بناغلي تائي دا نسخې کټ مټ د ستر خوشال په څېر نظم کړي، چي توپیر ئې ګران دئ.

نوموړي نظمونه نه یوازي داچي د هغو کسانو لپاره ګټور دي، چي زیاته توجه ئې یوناني طب ته ده، بلکي د یوناني او عصري طبیبانو لپاره هم ګټور اثر دئ، چي غواړي د یوناني طب په اړه معلومات تر لاسه کړي.

دوهمه برخه ئې وقایوي طب ته ځانګړې کړې ده، چي (۱۸) اتلس نظمونه، (۸) اتلس یو بیتیزي او څو دوه بیتیزي، څلور بیتیزي او شپږ بیتیزي دي، چي ورسره پر ځنګ ئې د طبي اوزانو قیاسي او مایعاتي اندازې هم معلومي کړي دي، د کتاب دغه برخه هم ځکه په اوسني وخت کي که څه هم چي یوویشتمه پېړۍ ده خو وقایوي طب ته زیاته توجه او پاملرنه کیږي یا نه ده سوې، خو دلته په دې کتاب کي ټولي نسخي د خوشال دي چي پېړۍ وړاندي ئې لیکلي دي، خو بیا هم اوس ورته اړتیا ده، ځکه هر هغه مسایل چي په ورځني ژوند کي انسان ورسره مخامخ کیږي پکښې رانغښتل سوي دي، د مثال په توګه: د ویني کښل، د بدن صفایي(حمام کول)، د مېږه او ماینې تر منځ د ښه اړیکو لاري چاري، ښځو ته د حمل په وخت کي صحي او ښوونیزي لارښووني، د یوځای والي(کوروالي) په اړه لارښووني، د چیښلو او خوړلو اداب د روغ صورت او تندرسته بدن د لرلو لارښووني او نور دي.

پورته ياد مسائل د نظم په ژبه هغه وړاندي سوي نسخې دي، چي په اوسني وخت کي نارينه او ښځي ټول ورته اړتيا لري، خو له بده مرغه چي د خپل دود او رواج له مخي ئې د پوهېدلو په موخه پوښتنه له چا څخه نه سي کولای. خو په دې کتاب کي په خوږه ژبه (نظم) ورته وړاندي سوي دي، چي کولای سي په توسط ئې خپلو پوښتنو ته جوابونه پيدا کړي.

په دريمه برخه کي ئې (۴۲) تنه کندهاري طبيبان، (۱۰) اهل هنود طبيبان او (۲۴) طبيباني معرفي کړي. چي ټول ئې د تېري يوې نيمي پېړۍ بيا تر دې مهاله (۶۶) کسان کيږي.

دغه برخه ئې هم ځکه د ستايلو ده، چي تر دې مهاله دکندهاري طبيبانو په اړه چا څه نه دي کړي. تـائي صاحب پـه دې لار کـي خـورا ستونزي ګـاللي، څغاستي ئې کړي، د هغو طبيبانو په قريبانو، خپلوانو او اولادو په پيدا کولو پسې ئې زهره چاودلې، په وار ـ وار ئې تر کورو ورغلی خو بيرته مايوس راغلی. په خاصه توګه د ښځو د ژوند پـه سپړلو او څېړلو کي، دلته دود دادئ، چي ډېر کسان نه غواړي چي د خپل مور، خور او مېرمني نوم دي خلکو ته وروښيي د ژوند حالت خو ئې بېخي نه، دوی دا کار يا شرم او يا د ټولني د دود او کلتور خلاف ګڼي، چي له بده مرغه همدا کتاب ئې ښه بولګه ده، دلته اکثره طبيباني د پلانکي او پلانکي د مور په نامه معرفي سوي نه په خپل اصلي نامه. په دې برخه کي زه د ښاغلي تـائي صاحب صبر، زغم او حوصله ستايم، چي د ډېرو ستونزو سره ـ سره ئې وکولای سول، چي په دې عنعنوي ټولنه کي ناممکن ممکن کړي او د کندهار نومورکي طبيبان او طبيباني د تاريخ په پاڼو کي خوندي کړي.

څلرمه برخه ئې لغاتونو، انځورونو او او د کتاب خاتمې ته ځانګړې کړې ده، چي پر ځنګ ئې د کتاب ماخذونه، د ليکوال لنډه پېژندنه هم ورسره راغلې.

په دغه برخه کي ئې ما تـه تر ټولو مهمه د لغاتونو معنا او تشريح ده، چي د يو ناني طبابت په برخه کي به ښايي لوږی کس تائي وي چي داکار ئې کړی. ښاغلي تائي په دې برخه کي هم خورا زحمت ګټلی، پـه ډېره خواري سره ئې د طبي بوټو، د ځينو ناروغيو پېژندنه ا د لغاتو معنا او تشريح کړې ده، چي د بېلا بېلو عواملو لکبله ئې تغير او تحول کړی دئ، چي يا پـه بشپړه ډول له منځه تللي او يا په مؤقتي بڼه له پامه لوېدلي او يا هغه لغتونه دي، چي پـه ځينو ځايونو کي ئې خاص خلک وايي؛ لکه: اطريفل (د توري اريړې، ژړي اريړې، املي او بللي څخه جوړ ترکيبي درمل دي چي دماغ ته طاقت ورکوي)، انګوز (يوناني درمـل دي) برسام (د يوناني نـاروغي نـوم دئ) ځاربـه (چـاغ) حلـوان (وری/ مرغوږي) سرسام (د يو دماغي ناروغۍ نوم دئ) قولنج (د ګلمو درد) کوږي (حلالوي) کودک کا (کنډل) وشـي (زهـر) او نـور دا ډول لغتونـه راټـول کـړي. تـائي صـاحب د دې چـاري د تـر سـره کولـو لپـاره د يونـاني طبيبانو څخه پوښتني کړي، غرو رغو تـه پسـې تللی او کوڅه پر کوڅه پسي ګرځېدلی دغه ارزښتناکه زېرمه ئې راغونډه کړې او بيائې تشريح داړوند مثالو سره لوستونکو ته وړاندي کړې ده، تر څو د زمانو په تېرېدو سره د خلکو د وينګ او ليکنګ (لوستلو او ليکلو) له دايرو څخه ونه وزي.

زه د ښاغلي تـائي داهڅـي چـي (د خوشـال ختـک نوې پخوانۍ طب نامـه) کي تر سره کړي ستايم، پر ګوتو دې برکت، عمر دې ډېر او قلم دې روان وي.

صدیق الله عظیمي

# خرقه شریفه د تاریخ په اوږدو کي

## (د خرقې شریفي اړوند د افغانستان د واکمنانو فرمانونه)

(۳)

**د افغانستان دلوی امپراتور احمدشاه بابا فرمان:**

دغه ستر امپراتور خرقه مبارکه په خپله دیو ستر فاتحانه نظر پراساس ترلاسه کړه او کندهار ته ئې راوړه، خو کله چي د (۱۱۸۳هـ ق) کال، په لومړیو کي احمدشاه بابا د افغاني امپراتورۍ دغربي قلمرو دتنظیم لپاره د لښکر کښۍ اراده وکړه، وروسته د دغه لښکر کښۍ څخه ئې د محرم الحرام د میاشتي په دوهمه لسیزه کي د خرقې مبارکي خدمت پر خپله غاړه واخیست، د خرقې مبارکي کیلۍ ئې په خپل لاس کي ونیول او د دې غټ امانت لپاره ئې یو مسجد جوړ کړ، چي د دغه مسجد د جوړېدو په جریان کي د امبارکه خرقه د دولت ترنظر لاندي په هغه زاړه مسجد کي ساتل کېده. چي وروسته د دولتي اعضاوو او عامو خلگو د رایو د تصویب او انتخاب په نتیجه کي الحاج مولوي عبدالحق د ملا شکور زوی او د ملازلال لمسی په قوم یعقوب زی الکوزی، د خرقې مبارکي د خدمت لپاره مقرر کړل سو. احمد شاه بابا په خپله ټاپه، د دولت د نورو غړو او د نورو ادارو مسئولینو په گډون یوفرمان ولیکی او هم ئې وویل: چي دا فرمان به د دولت په ټولو اداروکي ثبت سي. د افغانستان دولت د دا ټولو اسنادو او ارقامو سربېره د خرقې شریفي د خدمت او ساتني لپاره یو لړ اداري اصلاحات وکړل. د ده د غه طریقې د زړورتوب او همت د (۱۱ ـ ۱۲) هجري پېړۍ پوري د افغانستان پر کامل استقلال باندي پوره اثر درلود.



هغه فرمان چي ستر ټولواک غازي احمدشاه بابا د خرقې شریفي د لمړي متولي حاجي عبدالحق په مقرري کي صادر کړی.

همدا رنګه د کندهار نوې ویاله چې په احمدشاهي کانال سره ئې شهرت درلود، دراني احمدشاه بابا په خپل ژوندکي د هغې دکیندلوکار شروع کی، چې کار ئې وروسته دتیمورشاه دوراني په واکمنۍ کې سرته ورسېدی ( دکندهار خلک ئې په شاه ویاله سره یادوي). ذکرسوې ویاله او د هغې تر اوبو لاندې مځکې چې د دغه ویالې په اوبو سره اوبېدې او د هغې په حدودوکي چې کومې مځکې وې، هغه ټوله د خرقې شریفې وخدمت او تولیت ته ځانګړې سوې وې، چې وروسته په (۱۱۹۴هـ ق) کال درجب المرجب په میاشت کې د هغه امپراتور د زامنو په مهر او امضاء سره د خرقې شریفې وقف وګرځېدلې، ولې چې دغه نیک نیت مرحوم احمد شاه بابا پخپله درلود، چې وروسته تیمورشاه هم د معتبر سند پر مخ په خپل مهر او د خپلو ورونو په مهر دغه ویاله او دغه مځکې چې ترشاه ولې



هغه فرمان چې ستر ټولواک غازي احمدشاه بابا د شاه ویالې دکیندلو په اړوند د افغانستان دولت ته صادر کړي دي.

لاندې وې د خرقې شریفې وقف وګرځولې او دغه وقف نامه ئې حاجي عبدالحق الکوزي ته، چې د خرقې شریفې متولي وو وسپارل سوه، چې ټوله متن ئې د دغه قراره څخه دئ:

( هوالله تعالي مالک الملک والاستحقاق، ولله میراث السماوات والارض وهو بکل شئ خبیر )

د دغه فرمان څخه څه موده وروسته ستر ټولواک اعلیحضرت لوي احمدشاه بابا تر (۲۵) کاله او (۷)اوه میاشتې و څو ورځې پاچاهۍ وروسته د (۱۱۸۶هـ ق) کال د لومړۍ خور په دوهمه چې د (۱۷۷۲ م) کال د جون د میاشتې د درېیمې سره سمون خوري د پنجشنبې په ورځ په توبه کي چې (د کندهار جنوب شرقي طرف ته تقریبا (۹۰) نوي میله لیري د اوسني سپین بولدک دکوړک په غره کې یولوړ او سوړ ځاي دي وفات سو) او جنازه ئې په شاهي آدابو سره احمدشاهي کندهار ته راوړل سوه. د شهزاده سلیمان سدوزي له خوا د احمدشاهي کندهار په شاهي باغ کي په عالیشانه ځای کي چې احمدشاه بابا پخپل ژوند کي د هغه ځای کار شروع کړی وو په هم هغه ځای کې ښخ سو. احمدشاه بابا داسې غوښتل چې د ده د قبر پر سر د خرقې شریفې ځای وي، نو اوس چې تاسې دا عالیشانه ګنبته د غازي ستر ټولواک لوي احمدشاه بابا پر هدیره ولاړه وینې د احمدشاه بابا په ژوند کې ئې کار شروع سو، چې لومړی منزل ئې د ده د قبر لپاره او دوهم منزل ئې د خرقې شریفې لپاره وقف سوی وو، خو بالاخره د احمدشاه بابا دغه ارمان پوره نه سو او د دغه عمارت کار په (۱۱۹۰هـ ق) کال د تیمورشاه سدوزي په پاچاهي کې تکمیل سو (وکیلي: ص، ۲۱۲)

د تېمورشاه دراني فرمان:

د احمدشاه بابا تر وفات وروسته د ده زوی تیمورشاه د پلار ځای ناستی سو. تیمور شاه د خپلې واکمنۍ په دوره کي هم د خرقې شریفې د عزت او درناوي لپاره کارونه وکړل. تیمورشاه سدوزي هم د خپلو ورونو لکه شهزاده سلیمان، شهزاده سکندر، شهزاده پرویز، شهزاده داراب، شهزاده شهاب او شهزاده سنجر سره د قرآن کریم تر دغه آیة لاندې:

ژباړه: همغه چي خپل مالونه د الله په لار کي لګوي او بیا په خپلو انفاق کړو مالونو پسې نه کړول کوي او نه منت بارول. دوی ته د خپل رب په خوا کي خپل اجر دئ، نه پر دوی څه وېره سته او نه به غمجن سي. (سورة البقره، آیت. ۲۶۱)

د دغه نوې ویاله چي او به ئې په احمدشاهي اشرف البلاد ښار کي د ځمکي د خړوبولو لپاره بهېږي، چي سرچینه ئې د ارغنداب د رود څخه د شمال او لوېدیځ له طرفه و جنوب او مشرق طرفته جاري ده. د غه ویاله چي په هغه.وخت کي احمدشاه بابا ژوندی وو او د الله جل جلاله د رضاء لپاره ئې په خپل مالي لګښت وکیندل او د دغه اوبو څخه ئې خړوبونکې علاقه د خرقې مبارکي وقف وګرځول. ماسوا د حرم سرای، انارباغ، مجلس باغ او منزل باغ څخه، چي د دغو اوبو څخه ئې خړوبېدل ازاد وه.

په دغه وخت کي د محصولاتو د راټولولو وظیفه وقاضي القضات ملا فیض الله خان ته وسپارل سوه، چي په دغه اوبو سره هر چیري ځمکه اوبېږي دهغې ځمکې محصول به د دغه برکتناکه ځای لپاره چي حق د تولیت ئې و حاجي الحرمین الشریفین (حاجي عبدالحق دراني الکوزي) ته ورکړل سوی دئ وسپاري او هغه ځایونه چي خلکو په خپل مالي لګښت آباد کړي وي اویا ئې په اربابي ډول پر هغه تسلط وي هغه په همایون پوري تعلق لري او هغه محصولات چي هر کال هره میاشت او هره ورځ (که نقدي وي او که جنسي وي) د هغه قراره څخه چي ذکر سو هغه به فقراء مساکینو او د فاتحې په مراسمو کي مصرفېږي.

شهزاده شهاب دغه وقفنامه په ښایسته خط پر داسي کاغذ ولیکل چي تقریبا اوږدوالی ئې یو متر او پنځه ویشت سانتي اوتقریبا دېرش سانتي ئې بردوالی درلود. عزیزالدین وکیلي وایي، چي دغه لیک ما په کال (۱۳۴۱هـق) د حمل د میاشتي پر (۲۹) نه ویشتمه د چهار شنبې په ورځ د ماپښین د دروبجو څخه وروسته د حاجي عبدالرازق، ولد حاجي عبدالحمید، ولد محمدصدیق، ولد محمدعثمان، ولد حاجي حفیظ الله، ولد حاجي عبدالحق اخندزاده چي دغه وخت د (۸۰) اتیا کلنۍ په عمر د فلج په مریضۍ مبتلاء وو ولیدئ. (وکیلي، ص. ۵۱)

د تیمورشاه دراني دوهم فرمان:

تیمورشاه دراني یو بل فرمان هم د خرقې شریفې لپاره صادر کړئ، چي هغه په هره ورځ کي د پنځوس منه ډوډۍ پخولو فرمان وو. د (۱۱۸۲هـق) کال څخه په کابل او بیا په کندهار کي هره ورځ پنځوس منه ډوډۍ د خیرات لپاره و فقیرانو او مسکینانو ته د افغانستان د دولت له طرفه منظورسوه، په کندهار کي دا اصول د هغه شاهي ویالې څخه اصول کېدل چي د خرقې شریفې لپاره وقف سوې وه،چي هرکال به

امپراتور تیمورشاه دغه فرمان تصدیق کوی او د دې ګذارش به ئې اخستی، چې پرعامو خیرات مقرره دئ.

کله چې امپراتور تیمورشاه په (۱۱۸۶هـ ق) کال د کندهار څخه وکابل ته د حرکت قصد وکړ نو د خرقې شریفې په اړوند ئې وویل: «د دې سنې څخه وروسته باید خرقه شریفه په هیڅ وجه بل ځای ته انتقال نه سي او نه باید دغه معظم لباس د واکدارانو او امیرانو د خواهش مطابق وګرځي؛ لکه په تېروخت کې چې به زورمندانو دغه خرقه شریفه د یوه ځای څخه وبل ځای ته وړل، نو وروسته تر دې به دغه خرقه شریفه د کندهار د مرکز څخه بل هیڅ ځای ته نه وړل کیږي. نن که دا زما د پلار د امر په منلو سره دا کار سرته ورسېږي خرقه شریفه د ده د خواهش مطابق د ده د قبر پر سر کښېښول سي، نو کېدای سي چې سبا به د بلې سیمې یو کس پر دې سیمه حاکم سي نو هغه کس به بیا د خپل امر په تر سره کولو سره دغه مبارکه خرقه خپلې سیمې ته یوسي، چې په هغه صورت کې به بیا د کندهار اولس د دغه مبارک نعمت څخه بې برخې سي؛ لکه څنګه چې تېرو واکمنانو د خپل خواهش مطابق د یوې سیمې څخه بلې سیمې ته نقلول، چې اخیري شرف ئې د کندهار د خلګو په برخه سو، نور نو موږ په هیڅ وجه نه غواړو چې دا مبارکه هستي مو له لاسه ووزي، نو د دې لپاره تر ټولو غوره لار داده، چې د غه مبارکه خرقه دې د هغه پر ځای چې زما مغفور پلار ستر تولواک احمد شاه بابا د هغې لپاره جوړ کړی دئ، د هغه پر ځای دې په دغه نوي مسجد کې کښېښوول سي.» د تیمورشاه پردې خبرو باندې ټولوعلماوو فتوا ورکړه او خرقه شریفه په هم هغه مسجد (زړه جامع) چې په (۱۱۷۲هـ ق) کې جوړه سوې وه پاته سوه او تیمورشاه خپله د کابل پرلور حرکت وکړ.

نوربیا...

## لږ خبري ډېره ګټه

۱): د خیر خبره کوه او که نه پټه خوله اوسه.

۲): تر څو چې ته پټه خوله ئې روغ به ئې کله چې دې خبري پیل کړې یا به دې په ضرر وي او یا تاوان. (حدیث)

۳): انسانه! پر تا الله جل جلاله دوې عزتمنې ملائکې مقرري کړي، چې ستا لاړي ئې رنګ او ستا ژبه ئې قلم ده. (حسن بصري رحمه الله)

۴): که تاسو خپلو مؤکلو ملائیکو ته ستاسو د نېکیو او بدیو د لیکلو له پاره کاغذ اخیستلی نو خبري به مو ډېري کمې وای. (ابو علي الدقاق)

لیکوالي: ډاکټر مبارک علي

ژباړن: نوید آرین

# د شاهانو حرم سرای

شاهانو په حرم سرایو کې له یوې ځخه زیاتې ښځې درلودې. د حرم سرای درلودلو رسم د پارس له شاهانو را روان وو. حرم ئې دې ته ویل کومو ښځو چې په پاچا اړه درلوده هغوی ئې له نورو ښځو بېلې د پاچا په ماڼیو کې راټولولې او هلته ئې تر سخته ځارنه لاندې ساتنه کېدله، هیچا اجازه نه درلوده چې د پاچا په ژوند کې یا د هغه تر مړینې وروسته له هغه ښځو ځخه د یوې سره واده وکړي. د پاچا د حرم ښځې د پاچا پت او عزت بلل کېدې، که ئې کوم جرم کړی وای د سزا په توګه ئې ټول ژوند په زندان کې تېراوه.

د پاچا ښځو تې له نورو ځخه بېلې ماڼۍ جوړولې او کوښښ ئې کاوه، چې د ښځو د ساعت تېرې لپاره د ژوند ټول اسباب موجود کړل شي ترڅو هغوی له ماڼۍ ځخه بهر کتو ته هیڅ اړتیا پیدا نه کړي او نه د بهرنۍ نړۍ په حالاتو کې کومه لېوالتیا وښیي.

ماڼۍ ته تر ورتلو وروسته هغوی یوازې د پاچا سره لیدلی شوای بل د هیچا سره نه، چې له ماڼۍ بهر ئې د چا سره کار پېښېده د خواجه سرا سره ئې تماس ټینګوی.

خواجه سراګان هغه خلک وه، چې خاص ئې د پاچا د حرم سرای د ساتنې لپاره په دنده ګومارلي وه، د هغوی له وچایبو یوه وجیبه دا هم وه، چې د باچا په ښځو پسې ستر ګې واړوي او وې ځاري.

پخپله خواجه سراګان هم ځارل کېدل، که لږ شک وربأندي پیدا شوی وای، چې د پاچا د ښځې سره ئې تار ځغلولی یا ئې جنسي تماس ورسره نیولی دئ، د هغه سزا مرګ وو.

په مسلمانو پاچاهانو کې تر ټولو ستر او له برمه ډک حرم د عثماني خلیفه ګانو وو.

کله چې سلطان یلدرم له ګوډ تیموره ماته ومنله یلدرم او د هغه ملکه ونیول شول تیمور یلدرم یوې پنجرې ته واچاوه بیا ئې د هغه مېرمن او ملکه لڅه لپړه ودروله او امر ئې ورته وکړ، چې ساقي شي او په دربار کې خلکو ته نوبت پر نوبت جام په لاس شراب وړاندې کړي، له دغه پېښې ځخه د عثماني خلیفه ګانو زښت سپکاوی وشو. تر هغه وروسته عثماني خلیفه ګانو سوګند وخوړ چې واده به نه کوي ترڅو آینده د داسې ستر توهین نوبت را نه شي، بیا عثمانیانو په حرم کې یوازې مینځیانې ساتلې، له ټول سلطنته ئې ښکلې نجونې راټولولې او د مینځې په توګه ئې په حرم کې ساتلې، دغه راز ئې له نورو پاچاهانو هم په خراج کې ښځې غوښتې، نتیجه دا شوه چې په عثماني حرم کې د نژدې او لیرې هیوادو ښځو د خلیفه د مینځو په توګه ژوند تېراوه.

د حرم د ښځو ساتنه د خواجه سراګانو پر غاړه وه، خواجه سرا ئې هغه غلام ته ویل چې په کشرتوب کې ئې خصي کاوه د هغوی مشر ته ئې قزل آغا یا د نجونو آغا ویل د خواجه سراګانو دنده دا وه، چې د حرم د ښځو پالنه وکړي، ماخوستن خلیفه حرم سرای ته ورتله هلته ئې ښکلې او پی مخې مینځې په کتار کې ورته درولې، خلیفه له هغوی ځخه یوه د شپه تیر لپاره خوښوله بیا ئې هغه

مینځه د خلیفه د خوب کوټې ته د ورلېږلو لپاره چمتو کول، خوشبویي ئې په وهل او د پاچا د خوب کوټې ته ئې ورلېږل. په همدغه شپه ئې د هغې او د خلیفه د یو ځای کېدو تاریخ کتاب ته رسوه ترڅو د حمل نېولو په نېټه ټاکلو کې آساني وي.

د کومې ښځې چې نارینه اولاد کېده، هغې ته سلطانه لقب ورکاوه او چې اولاد ئې نه کېده هغه یوازې مینځه وه، زیاتره وخت یوه مینځه یو ځلي د خلیفه سره یو ځای کېدله، د مینځو له ډېروالي څخه د بل ځلي نوبت نه ورسېده، نه د آینده لپاره د خلیفه پام ور اوښت او هغې پاته ژوند د یوازیتوب په دوزخ کې تېراوه.

په ماڼۍ کې هغه وخت سلطانه د غټې درجې ښځنتنه کېدله. کله چې ئې زوی د پلار پر ځای خلیفه ټاکل کېده هغه وخت ئې هغې ته د خلیفه د مور لقب ورکاوه، چې ډېر درونداو له ویاړه ډک خطاب وو.

عثماني خلیفه محمد فاتح یو قانون جوړ کړ، چې د هغه له رویه خلیفه باید پر تخت تر کښېښنستلو وروسته خپل ټول ورونه و وژني ترڅو په راتلونکې کې د تخت پر سر کورنۍ جګړه پیښه نه شي او د ستر عثماني خلافت د رنګېدلو د ګواښ مخه ونیول شي، وروسته ئې په قانون کې لږ بدلون راوست اوس ئې شهزادګان نه وژل، بلکې په دنګو ماڼیو کې ئې بندیانول. دغه ماڼیو ته قفسونه ویل، شهزادګانو تې د ساعت تېرې لپاره مینځې وروستلې، مګر د دې خبرې ئې پوره ځارنه کوله چې مینځې له شهزادګانو ډکې نه شي که به کومه مینځه ډکه شوه ژر تر ژره ئې د هغې په ګېډه چاړه ورمنډل.

کله چې پته لګېدلې وای چې په حرم کې مینځې د خواجه سرا یا د کوم بل چا سره بدلمني کړې ده، هغه ئې د سزا په توګه یوې بورۍ ته اچوله بیا ئې هغه بورۍ د باسفورس په سمندرګي کې ډوبول، د عثماني خلیفه ابراهیم په دور کې داسې یوه پېښه رامنځته شوه: په حرم کې آوازه ګډه شوه، چې یوې مینځې او خواجه سرا مخ سره تور کړی دئ. پوښتنه ګروېږنه وشوه، مګر څرک نه لګېده چې کومې مینځې مخ تور کړی دئ، خلیفه د ستونزې هواری را و ایست هغه امر وکړ چې د ماڼۍ ټولې دوه سوه اتیا مینځې په بورۍ کې واچوئ او د باسفورس په سمندرګي کې ئې ډوبې کړئ. له دغه دوه سوه اتیا مینځو څخه ئې د یوې مینځې د بورۍ خوله ټینګه نه وه تړلې، سمندر ته چې ئې ور تېل وهله، د بورۍ خوله وازه (خلاصه) شوه مینځه ترې را ووته، نژدې یوه فرانسوی بېړۍ تیرېده هغې ولیده او مینځه ئې وژغورله، پاریس ته په رسېدو سره مینځې ټول حال ووایه.

د خلیفه په مړ کېدو سره د هغه ټول حرم یوې بلې ماڼۍ ته لېږدېده، دغه ماڼۍ ئې د اوښکو ماڼۍ بلل، دلته هغوی پاتې ژوند په بېلتون او یوازیتوب کې تېراوه.(۱)

په هند کې مغول شاهانو هم د حرم ښځنته کښېښوده. اکبر پاچا د حرم لپاره اصول او قوانین جوړ کړل. د مغولو حرم د عثمانیانو له حرمه ډېر توپیر درلود، مغولي شاهانو مینځې درلودې او ودونه ئې هم کول او په حرم کې د پخواني او مړ شوي پاچا مېرمنې هم اوسېدې د حرم ساتنه په ډېره سختۍ سره کېده، تر ماڼۍ بهر راجپوت سپاهیانو پیره کوله، خواجه سراګانو یوازې د حرم او نورې دنیا ترمنځ د رابطې او تماس کار کاوه، په ماڼۍ کې دننه توري په لاس ښځو پیره کول، په ماښام کېدو سره ئې د ماڼۍ دروازې د بهرنیو خلکو لپاره تړلې.

په ماڼۍ کې پر دننه ښځو ډېرې سختۍ نه وې، هغوی چې غوښتې وای د یوه وزیر کور ته ولاړې شي یا د وزیر ښځې غوښتې وای د دوی سره و ویني نو ئې اجازې غوښتلو ته اړتیا درلوده، له ماڼۍ څخه د بهر وتلو پر وخت ئې پرده کوله زیاتره په ډولیو کې سپرېدلې او د

سپاهیانو په بدرنګه داړوندوزیر کره تللې.

درباریانو او اولس د احترام په وجه د پاچا د مېرمنو نومونه نه اخیستل، د اکبر پاچا نوموتي درباري مؤرخ ابوالفضل د درباز د نورو مؤرخانو غوندي په خپل کتاب کي هیڅ ځای هم د پاچا د مېرمنو نوم نه دی اخیستی، چي د نامه ځای به ئې راغی له استعارو او شارو ئې کار اخیست، د مثال په توګه بدایوني یو ځای لیکي: «سږ کال د پاچا له مېرمنو څخه د یوې مېرمني کوچنی په نس شو پاچا د سلیم چشتي خانقاه ته ورغی او خپله مېرمن ئې هلته پرېښوده.»(۲)

بل چااجازه نه درلوده، چي د پاچا حرم ته ورشي، مګر اکبر پاچا سلیم چشتي ته ډېر درناوی درلود او دومره ورڅخه اغېزمن شوی وو، چي د مانۍ هغه برخي ته ئې بوت چیري چي د پاچا مېرمني اوسېدلې، حرم ته په ورتلو سره د حرم ډېري ښځي د سلیم چشتي مُرېداني شوې، پردې خبره د پاچا زامنو او وراره ګانو ګیله وکړه، چي مېرمني ئې د سلیم چشتي په مُرید کېدلو سره دومره د هغه تر اغېز لاندي راغلي دي، چي خپلو مېړونو یعني دوی ته هیڅ پاملرنه نه کوي. پاچا چي دا واورېدل وئې ویل: دنیا په ښځو ډکه ده تاسې نور ودونه وکړئ په دې کي څه مشکل لرئ.(۳)

د مغولي پاچاهۍ په آخري دور کي په حرم سرای کي اساني رامنځته شوې وه، ډېري سختۍ نه ورباندي کېدې او د حرم ښځو ته تر ډېره بریده آزادي وه ښځو کولای شول چي د پاچا په اجازه سره په مېلو او تېلو کي ګډون وکړي، په آخري وختو کي د حرم پر ځای د زنان خانه ټکی کارېده او د "د زنان خانې په اړه یوې انګرېزۍ ښځي ولیکل:

« د پاچا د حرم ساتنه د ښځو پر غاړه وه، د ساتړنکو ښځو سره غټ ډانګان ورسره وه، تور پوستي خواجه سرایانو د نرانو کالي اغوستي وه، د مړه پاچا کونډو ساده اغوستن کاوه، بل پلو ته د واکمن مېرمنو زرین کالي اغوستي وه په ګېڼو پسوللي او د بدن هر اندام ئې ورباندي پوښلی وو، لباسونه ئې ډېر درانه او غټ وه، پر ځمکه ورپسي ځکېده، چي تلې مزدوري ښځي به ورپسې وې او د لباس لاندینۍ برخه ئې ورپسې وړله.» (۴)

د پاچاهانو ترڅنګ د پاچا وزیرانو او نورو امیرانو هم خپل حرمونه او زنان خانې درلودې، د کوم کس چي په حرم کي څومره ډېري ښځي وې، هغومره ئې ډېر عزت کېده، کله چي ئې د یوې لوړ پوړي کورنۍ ښځه ودوله د هغې سره ئې له کوره دوې مینځې هم د خسر کره راتلې.(۵)

فیني پارکس د "اَوَد" د حرم په باب لیکي:«په زنانه خانه کي ښځو یو د بل پر خلاف دوسیې جوړولې او یو د بل د پښو خاورې ئې کښلې، د کومي مېرمنې چي هلک نه کېده هغې داسي ښووله لکه کوچنی چي ئې په نس وي، کومه مېرمن، چي وچه او شنډه وه د اولاد زېږولو هیله ئې نه درلوده، هغې له بلي ښځي کوچنی اخیست په بدل کي ئې د کوچني مور ته د میاشتي پنځه سوه کالداري ورکولې، له دغه ډاره چي مور ئې کوچنی بیرته را څخه و نه غواړي خلک را خبر نه کړي، چي زه ئې اصله مور نه یم نو ئې د کوچني اصله مور په زهرو وژله.(۶)

حرم چي د هر چا وي که د عثماني خلیفه ګانو وي او که د هند د مغولي شاهانو، په هغه کي ښځه د قفس د مرغه په شان بندیوانه وه، ښځه چي ئې حرم ته ښکېلوله، هغې د بهرنۍ دنیا سره خپله رابطه ختموله او پاته ژوند ئې د جهالت او بدمرغۍ په تیارو کي زغمه، همدا وجه ده چي د حرم بندیوانو ښځو دوسیې جوړولې او یو د بل په بده خوشحاله وې. د حرم په بې غوره او بې حس چاپېریال کي د ښځو ذهني پرمختګ په ټپه درېدلی وو، د مانۍ دنګو دېوالو هغه د بهرنۍ نړۍ له بدلونو بې خبره ساتلې وې او په حرم کي د ننه د

یو راز بندېزو له کبله هغو نه شو کولای د خپلو ولولو او جذباتو څرګندونه وکړي د اورنګزېب پاچا د لوڼو په هکله ویل کېدل، چې ډېري هوښیاري او چالاکه نجوني وې، مګر اورنګزېب بندېز ورباندي لګولی وو، چې له حافظ پرته به نور پارسي دېوانونه، نه ګوري.

په حرم او زنان خانه کي بدني غذا ډېره وه، خو د روحي او فکري غذا کاختي رامنځته شوې وه.

مېرمن میرحسن علي د هند پر رسم او رواج یو کتاب لیکلی، په هغه کي د خپلې یوې سهېلۍ ښځي په اړه لیکي: ما چي هغې ته د خپلو سفرونو په باب معلومات ورکول او د هغه ځایو بیان مې ورته کاوه چي ما لیدلي دي، هغې په ډېر افسوس سره و ویل کاشکي ما هم هغه ځایونه چي تا لیدلي دي لیدلي وای.

مېرمن علي زیاتوي: ما د هغې ښځي سره ژمنه وکړه، چي په تا به هم بهرنۍ دنیا وینم، بیا مي د هغې د مېړه او پلار سره ولیدل تر څو د هغې لپاره اجازه ورځخه واخلم، چي زما سره په سیل ولاړه شي، مګر افسوس هغوی اجازه را نه کړه زه زړه ماتې شوم، بیا مي خپلي سهېلۍ ته دا ناهیلی کوونکی خبر و وایه، هغې په نرمه لهجه راته و ویل: په دې کي زه ملامته یم ما ولي د داسي شي غوښتنه وکړه، چي زې حق نه لرم هیله کوم زما مېړه، زما پلار او زما کورنۍ زما پر دغه بې ځایه خواهش خپه نه شي او ما ته بخښنه وکړي. وروسته مي سهېلۍ را ته و ویل ته به یو ځلي بیا زما خپلوانو ته ورځې او زما لپاره به عفوه ورځخه غواړې. ما قول ورسره وکړ، چي سمه ده ورځم هرومرو به په دې اړه خبره ورسره کوم.» (۷)

له دې څخه اندازه وکړئ! ښځي د انسانیت په کوم مقام کي قرار درلود او ولي یوازي دغه یو خواهش ورپاته دئ، چي مېړه یا پلار ورځخه خپه نه شي، چي د یوه سړي واده شوې، مېرمن او یوه پټمنه ښځه دومره لاچاره کېدلای شي چي د ټولي دنیا له حالاتو بې خبره

شي په داسي صورت کي ښځي ته بس یوه دنده ورپاته ده، هغه دا چي کوچنیان وزېږوي او نسل پرمخ بوزي، تر هغو چي د کورنۍ د پت او عزت د خوندیتوب په لاره کي ساه ورکوي.

هر کله چي ئې ښځه د دنګو دېوالو تر شا له هره څه بې خبره وساتله هلته ښځه په ذهني توګه د وروسته پاتي والي کوهي ته ورټېل وهل شوه، دغه کار که زیانونه ودرلودل یو څه ګټې ئې هم وکړې، هغه دا چي کله ښځه له ټولني بېله شوه او د ورځني ژوند له بدلونو بې خبره وساتل شوه، هلته ښځي زاړه رواجونه او زړې کیسې له سینې سره ټینګي ونیولې او تر پېړیو – پېړیو ئې سینه پر سینه د هغوی ساتنه وکړه په هغه زاړه میراث کي د ژبي محاورې، کیسې، متلونه او لنډۍ شاملي وې، چي نرو پخوا لا له پامه غورځولي او هېر کړي، مګر ښځو ژوندي ساتلي.

دغه راز ټپې، سندري او نکلونه ښځو خوندي او وساتل یعني ښځي د لرغوني کلتور فولکلور او رسم و رواج تر ټولو ښې سرچینې وګرځېدې هغوی پخواني او قیمتي ارزښتونه د پېړیو په تېرېدو سره تر موږه را ورسول نن هم ښځي د ډېرو ناروغیو درملنه په سپېرکي، بارتنګو او نورو داروګانو سره کوي.

---

سرچینې:

۱ – نول باربر: لاردز آف د ګولډن هارن، نیویارک ۱۹۷۲ مخ ۳۰، ۹۴.۳۵.

۲ – عبدالقادر بدایوني: منتخب التواریخ، دویم ټوک (انګرېزي ژباړه) مخ ۱۰۹.

۳ – همدغه اثر: مخ ۱۱۰.

۴ – واندرینګ آف اپنیګریم این سرچ آف د پیکچر سیک فیني پارس، لومړی ټوک، لندن ال ۱۸۵۲ مخ ۸۵– ۸۹.

۵ – همدغه اثر: مخ ۳۹۰.

۶ – همدغه اثر: مخ ۳۹۲.

۷ – مېرمن میرحسن علي: مخ ۱۶۸– ۱۶۹ ابزرویشنز آف د مسلمانز آف اندیا اوکسفرډ کال ۱۹۷۸.

آزاده ژباړه: حمید فراز

# وروستی لیک

یادونه: د ۲۰۱۴ د اپریل پر ۱۷مه چې کله په ادبیاتو کې نوبل جایزه ګټونکی کولمبیایي لیکوال "ګابریل ګارسیا مارکز" مړ شو نو دغه الهام بخښونکی نثر د"وروستی لیک" تر سرلیک لاندې د ده په نوم په مطبوعاتو کې خپور شو. له خپرېدو سره سم د کلمبیا ملي راډیو ډیکلمه کړ او وروسته ډېر ژر په نړۍ کې نورو لسګونو ژبو ته تر ژباړل کېدو وروسته په پراخه کچه خپور او ډېر وستایل شو.

خو وروسته څرګنده شوه، چې دا ده نه دی لیکلی، بلکې د "جاني ویلچ" په نوم یوه مکسیکویي لیکوال ډېر پخوا لیکلی او اوس ئې ده ته ډالۍ کړی دئ. ژباړن

که خدای فقط د یوې شېبې لپاره له یاده ایستلای چې یوې نانځکې ږوندي بې ساه جسد نه یم او یو څه ژوند ئې په سوغات کې راکولای، نو بنایي هغه مهال مې هر هغه څه نه ویلای چې په ذهن کې مې راګرځېدل، بلکې هر څه به مې په ډېر سوچ ویل.

له شیانو او اشخاصو سره به مې مینه کولای، خو د هغوی د قېمت او بیې په وجه نه. بلکې د هغوی د معنوی ارزښت په خاطر.

خوبونه به مې ډېر لیدلای خو خوب به مې لږ کولای، ځکه پوهېدلی یم چې د هري دقیقې سترګو پټولو په وجه شپېته ثانیې رڼا له لاسه ورکوو.

ــر هغه مهال به مې تګ کولای چې کله خلک

د ماشومانو لوبو ته به تم کېدلای، د هغوی د معصومو څېرو له ننداري به مې د مینې او سپېڅلتیا الهام اخیستلای.

• له ملګرو سره یوې پیالې چای، د پسرلنۍ شپې د ځوارلسم د سپوږمۍ وربخمین آسمان او سهار د لمر راختلو ننداري به څومره کیف کولای.

که خدای فقط ډېر لږ ژوند رابخښلی وای، ډېري ساده جامې مې اغوستلې، د لمر تودو وړانګو ته لوڅ بدن کښېناستلم؛ یوازي مې جسم نه بلکې روح مې هم د هغه د مهربانۍ په وړاندي لوڅوله.

که مې زړه ژوندی وای، نورو ته مې د خپلو احساساتو په څرګندولو کې یوه ورځ هم ځنډ نه کوی؛ په ډېر شوق او ډېره مینه به مې خلکو ته ویلای چې راباندې ګران یاست، مینه درسره لرم. نفرت مې د یخې پر یوې ټوټې لیکی او لمر ته مې ایښودی. انسانان مې قانع کول چې څومره لویه تېروتنه ده د عمر د زړښت په وجه له عشق او مینې تېښته!

ورته ویل مې اصلاً حقیقت دا دئ، چې زړښت هغه مهال رامنځته کېږي او د فناء بادونه هغه مهال رااالوزي چې کله انسان له عشق او مینې لاس واخلي.

ماشومانو ته مې وزري ورکولې، بې له دې چې په الوت کې ئې څه لاسوهنه وکړم.

عمرخوړلو ته مې ثابتوله مرګ هغه مهال نه راخي چې کله انسان د سپین ږیرتوب پر پوله ودرېږي، بلکې

درپسې

مرګ هغه مهال د ژوند دروازه ټکوي چې کله انسان هېره پيل کړي.

اې انسانانو! ستاسو څخه مې خومره ډېره زدکړه کړې ده! ... زده کړي مې دي هر يو غواړي لوړي ته وخېژي. په داسې حال کې چې ريښتيني خوند په ختلو کې دی نه پر لوړه په ژوند کولو کې.

زده کړي مې دي چې کله يو ماشوم په لومړي ځل په خپله نانۍ خپره د خپل پلار ګوته نيسي نو نور هغه په خپل اسارت کې راولي؛ هو په يوه تلپاتي اسارت کې.

ما زده کړل يو انسان يوازې او يوازې هغه مهال حق لري خپل همنوع ته له لوړي وګوري چې کله يې د مرستې لاس وراوږد کړی وي.

ای انسانانو! خومره ډېر څه مې ستاسې څه زده کړل! ... مګر افسوس، دا هر څه هغه مهال ما ته څه په درد خوري چې کله مې بې روحه جسد په تابوت کې د دې لپاره اېښوول کېږي چې ستاسو پر مينه ناکو اوږو خپل د يوازيتوب او ابديت کور ته يووړل شم!

تل هغه څه ووايه چې احساس ئې کوې او تل پر هر هغه څه عمل وکړه چې فکر کوې او باور لرې چې صحيح دي!

آه! که پوهېدلای چې نن به وروستی ځل وي تا د خوب په حالت کې وينم. په ټول وجود به مې په غېږ کې نيولی وای او لوی خدای ته به مې لاسونه لپه کړي وای، چې ستا د روح ساتونکې پرښته مې وګرځوي.

که وپوهېږم نن به آخري ځل وي چې له کوره دې د وتلو په حال کې وينم، نو ټينګ به مې پر خپل زړه پوري نيولی وای، صرف د دې لپاره چې يو لږ نور هم پاته شې؛ او يو لږ نور دې هم په ليدلو زړه ته اوبه ورکړم.

آه! که وپوهېږم دا وروستی ځل دی چې وينم دې، نو يوازې مې يو شی درته ويل. او هغه دا چې: راباندې

ګران يې؛ مينه درسره لرم. بې له دې چې د تېروتنې په تورتم کې ولوېږم او فکر وکړم چې ته به په خپله په دې پوهېږې.

تل يو سبا شته او ژوند همېشه د غوره کارونو فُرصت راکوي، مګر که په تېروتنه فکر وکړم او وانګېرم، چې همدا نن مې د ژوند وروستۍ ورځ ده، نو غواړم تا ته يوازې او يوازې يو څه ووايم: بې حده مينه درسره لرم، تر څو دا خبره هېڅ وخت هېره نه کړې!

د سبا د هرومرو راتګ داډ له هېچا سره نشته؛ که ځوان وي يا سپين ږيری. ښايي نن د هغو کسانو د ليدلو وروستۍ ورځ وي چې ته مينه ورسره لرې او دربانديې ګران دي. نو هېڅکله فرصت له لاسه مه ورکوه. لاس په کار شه. هو؛ همدا نن!

ښايي سبا هېڅکله رانه شي او ته به هرومرو په همدې ورځې پسې آرمان کوې. چې د يوې موسکا او يو ځل په غېږ کې نيولو فرصت دې درلودی، مګر د ژوندانه بوختياوو د هغوی د وروستۍ غوښتنې له پر ځای کولو څخه راوګرځولې.

د کورنۍ غړي، دوستان، ملګري او ټول درته نږدې کسان همېشه درسره وساته؛ وخت ناوخته ئې په غوږونو کې د شتون اړتيا زمزمه کړه. په مينه او مهربانۍ ئې درته ګران ولره!

د (هيله کوم)، (ما وبخښه)، (مننډوی يم) او داسې نورو مينه ناکو اصطلاحاتو د ويلو فرصت هېڅکله له لاسه مه ورکوه.

هېڅوک تا ستا د پټو افکارو په خاطر نه يادوي، ځکه نو له خدايه د خپلو احساساتو د څرګندولو ځواک و قوت وغواړه تر څو دې ملګري او دوستان وپوهېږي چې څومره درته ګران او مهم دي.

ليکوال: ابراهيم عبدالله الغامدي

ژباړه: شبیر احمد

# ګرانه وروره، ودرېږه!

زما د ژوند شل پسرلي تېر سول، خو زه په تکو تورو تاریکیو کې وم ... د ړندې اوښې په څېر روان وم ... یوه ګړۍ ژوند مې کاوه مګر راتلونکي ته مې نه کتل ... په خوانۍ خوشحاله کېدل ... ما ګومان کاوه چې زه به د مړو خلکو په منځ کې همېشه یم ... شل پسرلیه تېر سول خو د دنیا خوند مې حس نه کړ.

مالونه مې ډېر دي، ملګري مې هم ډېر دي ... د کوم شي د کمي احساس کوم؟

نفس مې وړی دئ، سینه مې تنګه ده، دا لوړه به په څه شي مړه کړم؟ ... څه شي به دا سینه پراخه کړي؟ ... زما نفس هیڅکله سندرو موړ نه کړ، زما سینه لوبو پراخه نه کړه ... بلکي ټول سرچپه وختل ... لوړه مې نوره هم زیاته سوه او سینه مې نوره هم تنګه سوه.

ملګري مې بدل کړل، سفر مې وکړ، د دنیا له پاره مې یوه په زړه پوري سندره ووېل، ډېري شپې مې رڼې کړې، ډېر شراب مې وڅښل، ډېري لوبې مې وکړې او ستړی سوم، مګر لوړه د تل په څېر زیاتېږي او همدا ډول نفس تنګي.

داسې مې حس کړه ګواکي زه په خپلې نړۍ کې بندي یم او ځکه د خپل پراخوالي سره راباندې تنګه ده ... نفس مې تل د خپلې لوړي شکایت کوي ... هغه لوړه چې د ځکې مالونو مړه نه کړه، زما سینه تل د خپلې تنګۍ شکایت کوي ... هغه تنګي چې د ځکې لوبو پراخه نه کړه، ډېر او اوږده فکرونه مې ووهل او په پای کې حل لاره راته څرګنده سوه!

اوس به زه د راحت احساس وکړم، زه به د خپل نفس لوړه مړه کړم ... او د سینې تنګي به پراخه کړم! ... دا ده په دواړو لاسو کې مې چاره ده ... ځلېږي او موسکا کوي ... دې حل لاري ته خوشحاله ده، خلک بیده دي، کورنۍ هم بیده ده ... یوازې څو شېبې پاته دي ... او زه د راحت په شېبو کې ژوند کوم.

خو ... زه په همدې شېبو کې وم، چاړه مې په دواړو لاسو کې وه او زما و مړه زړه ته نژدې کېدل، وروسته تر ډېري چوپتیا په تېزۍ سره یو آواز راغلی چې ویل ئې: الله اکبر! ... الله اکبر! ... چاړه مې د لاسو څخه ایله سوه ... مړه زړه مې په حرکت کې راغلی، ګواکي زړه مې ورک وو، وروسته تر اوږدې مودې راویښ سو ... خوار سې نفسه! ... څه شي دې پیدا کړ؟ ... آیا دا آواز ناآشنا دئ؟ شل پسرلیه ئې اورې ... تر اوسه دې د دې آواز معنا نه وه حس کړې؟!

ما خپل نفس دې آواز ته د جواب ورکولو له پاره تشویقاوه ... د اوداسه او به مې راواخیستې او اودس مې پیل کړ ... پر ناولي مخ مې او به توی کړې ... آرام سو او د ده په آرامۍ سره مې نفس هم آرام سو، سړک ته راووتم، د مسجد پر لور ... کائنات د ویرې په وجه آرام وو ... هیڅ آواز نه پورته کېدئ ... هیڅ ږوږ نه وو ... مسجد ته په داسې حال کې داخل سوم چې د سهار د لمانځه ږغ کېدئ ... په صف کې د خلکو سره ودرېدم ... یو ډول خلک وه چې په ټول ژوند مې نه وه لیدلي! ... سپین مخونه ... چې نور ترې خپرېدئ ... پاک او آرام نفسونه ... د خلکو په منځ کې امام وړاندي سو ... پر خلکو ئې مخ راواړه او د صف پر برابري یې ټینګار ورته کاوه، د دې کس مخ زه ودرولم ... سپین مخ ... ښایسته، ګڼه او توره ږیره وربانديې چاپېره وه چې د مخ ښایست یې نور هم زیاتوئ.

ګواکي دا مخ او دا ږیره د تور آسمان په سینه کې د سپینې سپوږمۍ نوې ننداره ده. چې ده ته یې زیات حسن او ښایست ورکړی دئ او ګواکي دا دواړه ... ځلېدونکي ملغلري دي ... چې خلا تر خپرېږي ... او د دې خلا هغه وخت زیاته سوه چې کله مې د تورو ور ښېښو په منځ کې پیدا کړه ... دې کس خپل لمونځ پیل کړئ او ما هم د ده تر شا لمونځ کاوه ... زما نفس آرام وو ... سینه مې پراخه وه.

# د کابل پېغله

(۲۱)

(په زړه پوري اسلامي تاریخي ناول)

لیکوال: اسلامي مؤرخ: صادق حسین صدیقي

ژباړن: ډاکټر نثار احمد صمدواصفي/کاناډا

مهاجرین: شیرخان او عبدالرحمن ټوله ورځ په چمتوینو بوخت وه مهربانو، حبیبې، حُسن جهاني او ستارې خپلې ګېڼې له خانو وکښلې او په نورو سامانو کې ئې کېښېوولې. حسن جهاني او ستارې یوازي پر غوړو باندي طلایي چسپکان او په لاسو کې لږ بنګړي پرېښوول. هغوی دواړي په دې سادګۍ کې د فرشتو غوندي ښایسته معلومېدلې.

دا رښتیا ده چي ښایست نه زیور ته اړ دی او نه لباس ته، ښکلي هر وخت ښکلي وي. حسن جهانه او ستاره هم خکه ډېري ښکلې معلومېدې. دا دواړي شاپیریاني په یوه جلا خونه کي ناستي وې، مهربانو او حبیبه په بله خونه کي د سامان په راټولولو اخته وې، عایشه او هاجره هم ورسره ناستي وې. ارشد او اشرف په یوه بله خونه کي یوازي ناست وه. شیرخان او عبدالرحمن په برنډه کي پر څوکیو باندي ناست وه. مزدوراني او نوکرانۍ دوري هوري تېرېدلې.

لمر لوېدلی او تیارې خپل وزر غوړولی وو، ټولو په ګډه ډوډۍ وخوړله. شیرخان، عبدالرحمن، ارشد او اشرف د ډوډۍ تر خوړلو وروسته له کوره دباندي ووتل او د پوخي بارکونو څخه ئې څواسان راوستل او د دروازې مخته ئې ودرول.

دا مهال تیاره نوره هم ډېره سوې او شپه خپره سوې وه، سپوږمۍ تر نیمي شپې وروسته پر راختو وه. دا مهال هره خوا توره تیاره وه. پر څوآسونو باندي سامانونه کښېښوول سول، ارشد او اشرف سامانونه راچلول او عبدالرحمن او شیرخان هغه پر اسانو باندي تړل، په څه کم یو ساعت کي ټوله سامان پر اسانو باندي بار سول. دا مهال ښځي هم راووتلې او پر اسانو باندي سپرې سوې. شیرخان او عبدالرحمن څو نوکران درلودل، چي هغوی هم ورسره ملګري سول، ټولو د اسانو کیزې ونیولې او حرکت ئې ورکړ. آسونه هم کرار ـ کرار روان سول.

د پوخي مرکز څخه د وتلو صرف یوه لاره وه، چي هغه د بازار څخه تېرېدل، دا هغه څلور لاري (چوک) ته رسېده چي له هغه ځایه یوه لار مانۍ ته، بله د شور بازار د حضرت کورته. دریمه بازار ته او څلرمه همدې پوخي چونۍ ته تلل.

دلته په رسېدو سره دوی هره خوا د چیغو او کریږو آوازونه اورېدل خو شاوخوا توره تیاره خپره وه، برقي خادې او پایې موجودي وې، خو رڼا نه ترې شکارېده، دوی مخ د بازار پر خوا روان سول. دا هغه بازار وو چې تر پرون پوري د شان او سامان څخه ډک وو، خو نن تش او سپېره وو، ډېر دکانونه همداسي خلاص پاته وه، د هر دکان سامانونه غلا سوي وه، ډېري ودانۍ سوځل سوي او رالوېدلي وې، د بازار څخه د خنګله په رقم ډارونکي ږغونه راتلل، لیري او نږدې هیڅ انسانان نه تر ستر ګو کېدل ټوله بازار خاموش او بیده وو.

له نېکه مرغه د دې کاروان مخه چا ونه نیوله، دا ځکه چې غلو د ورځي ټول بازار لوټ کړی وو، له همدې امله دا وخت دلته هیڅوک هم نه وو، بلکي ټوله شاهي مانۍ ته تللي وه.

دغو قافله والو خلک لیدل چې غلي او په پټه وزي. دوی ټوله د شهرپناه دروازې ته ورسېدل، دلته پنځه خورا پیاوړي سقاوي پوځیان پیره وه، د شهرپناه دراوزه تړلې وه، شېرخان چې له لیري دا صحنه ولیدله نو وې ویل: دا څه وسوه! اوس به پر کومه خوا له ښاره وځو.

ارشد: هغوی فقط پنځه کسه دي او موږ کولای سو چې پر غالب سو.

شېرخان: آیا ته غواړې چې جنګ ورسره وکړې؟

ارشد: هو باید ورسره وجنګېږو.

شېرخان: اندېښنه خو دا ده که هغوی ته کومک را ورسېږي، نو؟

ارشد: ان شاءالله د کومک تر را رسېدلو مخکي به موږ له ښاره لیري تللي یو. ارشد د همدې خبري تر کولو وروسته آس پونده کړ او اشرف هم ورپسي روان سو، دواړو د خان سره توپکونه او توپنچې هم لرلې، ارشد دروازې ته په نږدې کېدو سره ولیده چې تته رڼا ده او پنځو غلو پر مځکه خپلې پښې غځولي او ناست دي. ارشد ورغی او ورته وې ویل چې موږ دباندي وځو، دروازه راخلاصه کړئ.

یوه غله خوله کړه ونیوله او ورڅخه وې پوښتل: ته څوک یې؟

ارشد ورته وویل: زه ارشد یم.

خدای خبر چې دارشد په نوم کې یو برقي تأثیر وو که څه، چې غله اول وبېرېدل او بیا فوراً ودرېدل. له دغو څخه یوه وپوښتل چې کوم ارشد؟ هغه سپه سالار ارشد؟

ارشد وویل: هو کې!

هماغه غل: ستاله پاره دروازه نسي خلاصېدای.

ارشد هم بېله ځنډه توپنګچه راوکښل او ټک ئې پر وکړ. غل خای پر خای چپه سو. اشرف هم خپله توپنګچه وچلوله او یو بل یې پسي وویشت، خو درېیم غله پر رامنده کړه. غلو توپکونه ونیول خو وبېرېدل او لاسونه ئې رېږدېدل او په همدې حالت کې ئې مرمۍ فایر کړې، خو هغه دارشد او اشرف تر څنګ تیري سوې. دوی دواړو هم بېله ځنډه توپنګچې پر را واړولې او دواړه ئې وویشتل. اوس نو فقط یو غل پاته سو او هغه هم فوراً خپل توپک وغورځاوه او ناري ئې کړې چې« الامان ـ الامان.»

ارشد په مضبوطه لهجه ورته وویل: لاسونه پورته کړه!

غله هم ژر خپل لاسونه د آسمان خوا ته لوړ ونيول. ارشد د آس څخه راوغورځېدی او د غله لاسونه ئې په خپل لباس سره ټينګ وتړل، دا ټوله کاروئه په صرف څو دقيقو کې تر سره سول.

ارشد د غله تر تړلو وروسته دروازه خلاصه کړه او ژر پر آس سپور سو او په لوړ ږغ ئې خپلو دوستانو ته وويل: راځئ دروازه خلاصه سوه.

شېرخان، ملګري او ښځي ټوله راروان سول او د دروازې څخه لـه راتېرېدلو وروسته لـه ښاره ووتل. هغوی په حسرت ډوله کاته سره ارګ ته مخ واړاوه او وروسته کرار - کرار مخ پر غزني روان سول. د نيمي شپې تياري هغوی فوراً په خپلو څپو کې واخيستل او له نظره غايب سول.

تاج پر سر کول: د ۱۹۲۹ د جنوری پر نولسمه د تاج پوشۍ کوم خاص او پرتمين مراسم نه وه، د شاهي مانۍ په هر دالان او صالون کي چوپه چوپتيا خپره وه. که به کوم ږغ هم واورېدل سو نو هغه به د وهلو ټکولو وو، خلک د مانۍ لوی صالون تـه ورننوتل او هلتـه د سقاوي پوځ قوماندانانو (محمد صديق او محمد يعقوب) د هغوی هر کلی وکړ، پر کومو څوکيو چي به لوی چارواکي، وزيران او آمران کښېناستل، نن پر هغو باندي د بچه سقاو څو لنډغر او غله ناست ول چي خلګو پر خندل.

پر مسلمانانو ظلمونه کېدل، توحيد لمانځونکي وژل کېدل، د اسلام د سربښندونکي ملت کورونه لوټ او تالان کېدل، د کابل شريف خلک په سخت مصيبت او وحشت کي راګير وه، د هغوی مال او عزت او ځانونه د لوی خطر سره مخامخ وه، خو برعکس د بچه سقاو د زوی ملګري او پلويان ملايان او پيران ډېر خوشحاله وه. هغوی ډېر خندل چي علت ئې دا وو، چي هغه بچه سقاو چي يو وخت ئې د چايو سماوار کاوه، بوټونه ئې پالش کول، لاره نيونکی او قمار باز وو، د بدمعاشۍ لـه امله ئې غلا ته لاس اچولی وو، نن د افغانستان د پاچا په حيث واکمن کيږي.

بچه سقاو د دغو خلکو موسکا تـه پـه کتلو سره وخندل، مخته ورغی او پر تخت باندي کښېناست او تاج ئې ور پر سر کړ. پلويانو ئې مبارکي ورکړه. بچه سقاو د ټولو خلکو تر مبارکيو وروسته وويل: زما نوم حبيب الله خان دئ او سر له نـنه زما لقب غازی حبيب الله خان دئ.

ټولو خلکو ورته وويل: دا خو ډېر مبارک لقب دئ. خدای دي تاسي، ستاسي حکومت او ستاسي پلويان تر ډېره لري.

په دې ډول د تاج پوشۍ پر مهال بچه سقاو د غازي حبيب الله خان لقب غوره کړ.

تر دغو مراسمو وروسته بچه سقاو امر وکړ چي نور دي نو وژني، ويني بهوني او غلاوي تم سي. پـه کابل او د هغه په ورپورو سيمو کي دي د امنيت جار ووهل سي.

تر پوره دېرش ساعته قتلونو او لوټونو وروسته په کابل کي د امن او امان ږغ وسو، بچه سقاو او نور ټول خلک د صالون څخه راووتل او خپل - خپل اوسېدنځای ته روان سول.

وروسته د حُسن طلبګار ...

# د لیکونو او مکتوباتو د راټولولو او خپرولو په اړه یوه یادونه

د شرق په فرهنګي حلقو کي له ډېري پخوا زماني څخه علماوو، شاعرانو، لیکوالو او صوفیانو خپلو دوستانو، شاګردانو، مریدانو او حتی د زماني حکامو او بادشاهانو ته لیکونه لیکلي دي، خو په دې لیکونو کي ډېری د کار خبري، حتی ډېر ګران فقهي مسایل، فلسفي، تاریخي، فکري او معلوماتي خبري او اصلاحي بیانونه راغلي دي، چي د فرهنګ، ادبیاتو او حتی د هیوادونو په سیاسي- اجتماعي تاریخ او د ځینو نورو موضوعاتو په لیکلو کي استفاده ځیني کیدای سي. ځینو پخوانیو او اوسنیو علماوو او فرهنګي اشخاصو نورو ته لیکونه لېږلي دي او یا دوی ته راغلي. ځینو دغه لیکونه له خانه سره خوندي کړي دي او ځینو بیا متاسفانه نه دي ساتلي.

زموږ په اوسنیو فرهنګیانو او سیاسي- اجتماعي شخصیتونو کي داسي کسان ډېر سته، چي لیکوڼه ئې لیکلي، خو راټول سوي او تدوین سوي نه دي. د مهمو کسانو- چي له خطونو ئې زموږ د ټولني د ادب، تاریخ او د وخت د حالاتو په باب څه تر لاسه کېدای سي. د هغو د خطوطو راټولول او تدوین کول خورا مهم کار دئ.

که چیري موږ د معاصرو نومیالیو خطونه راټول‌وو، نو دا خبره مو باید هیره نه وي، چي د ځینو دغه ډول اشخاصو ځیني خطوط په موقوتو خپرونو کي چاپ سوي هم دي. د دغو موقوتو خپرونو لټون ډېر ضرور دئ او بیا په هغو کسانو پسې باید وګرځو چي زموږ شاعر او لیکوال او یا سیاسي- اجتماعي شخصیت ور سره د خطونو د تبادلې رابطه درلوده.

ځکه نو د یو شخص لیکونه او خطونه باید په یوه مجموعه کي راټول سي، چي له متنه ئې د فرهنګ او د وخت د اجتماعي-سیاسي او فرهنګي حالاتو په باب حتی یوه خبره هم تر لاسه کېدای شي، لکه: د خان عبدالغفارخان (۱۸۹۰-۱۹۸۸م.) لیکونه چي پروفیسور خدمتګار تهیه کړي دي. هغه خطونه چي ځیني کسانو ته د دوی د دولتي موقف (وزارت، ریاست او یا مدیریت) له مخي په رسمي حساب لېږل سوي دي، د هغو راټولول او بیا د هماغه شخص له نورو شخصي لیکونو سره -چي پر راز - راز مطالبو لیکل سوي، ګډول سم کار نه دئ. د مثال په توګه یو شخص د یوې نشراتي یا علمي موسسې مشر دئ. یو چا ته ئې په داخل یا خارج کي د خپلي موسسې چاپ کړي کتابونه، مجله یا اخبار ورلیږلی دئ. مقابل لوري ترې منته کړې او نشر ته د رسیدو اطمینان ئې ورکړی دئ، د داسي رسمي لیکونو ټولول د فرهنګ له غنا سره مرسته نه کوي او نه ترې څه بودیږي.

د کندهار مجلې اداري هم د لیکونو دې اهمیت ته په کتو سره دا وپتیل چي د خپلو مشرانو او مشهورو لیکوالو ځیني مهم لیکونه او مکتوبونه چي ځینو لیکوالو، دوستانو او شاګرادانو ته ئې وخت پر وخت لېږلي دي او تر اوسه پوري بل خای نه دي خپاره سوي، د کندهار مجلې له لاري خپاره او خوندي کړي.

په درنښت

اداره

# د مولانا ابوالوفاء افغاني ليک پوهاند رشاد ته!

**يادونه:** مولانا صاحب د پښتو ژبې د اشاعت سره ډېره علاقه درلوده. د پښتو د کلاسيکو متونو د راټولولو خورا شوقي وو او ښه پوره مطالعه پکښې درلوده. د پښتو خطي آثارو ښه ډېري نسخې ئې درلودې، چې ډېره برخه ئې پښتو خطي ديوانونه ول، چې ځيني نادر او نايابه ديوانونه ئې په خپل خط نقل کړي ول. مولانا صاحب به د تدريس تر جدي وخت وروسته د خوشال خټک، رحمان بابا، حميد مومند او نورو شاعرانو شعرونه لوستل او خپله ئې هم شاعري کول. همدارنگه مولانا صاحب د ژبنيو، تاريخي او ادبي مسايلو سره هم ډېره دلچسپي درلوده. د پښتو ژبې د ليکوالو و اديبانو او د پښتو ټولني او تاريخ انجمن تر تاسيس وروسته ئې د ژوند تر پايه له دې ادارو سره خطي رابطه درلوده. خپلې مشورې او نظرونه به ئې ورېسره شريکول او د پښتو پخوانيو اثارو خورا نادري نسخې ئې چې د دوی سره خوندي وې، ورته رالېږلي دي. دلته به د مولانا صاحب هغه ليکونه درسره شريک کړو، چې وخت پر وخت ئې پښتو ټولني او ځينو مشهورو ليکوالو ته لېږلي دي. (اداره)

جلال کوچه ۹۳۲ – حيدرآباد دکن (هند)

د قوم ښاغلی خوان محترم رشاد له ربه بريالی غواړم!

گلالـــــی ښايســــــته ځـــــوان<br>
ننگيــــــالی د گـــــــل افغـــــــان

هغـــه ځـــوک دئ رشـــاد خـــان<br>
ربـــــــه تبـــــــل دي وي ودان

هـــــم دي تـــــل وي پـــــه امـــــان<br>
لـــــــه آفتــــــــه د دوران

بحرمـــــت د شـــــاه شـــــاهان<br>
محمـــــــــد نورالنبيـــــــــان

بابا رشاده!

السلام عليکم ورحمة الله! ستاسي مکتوب مبارک چي په شېرينو اشعارو مشتمل وو، پرون راورسېدئ. شکر چي روغ او جوړ له وطنه راغلاست. زه دا شل شپې کېږي چي ناجوړه پروت يم. تبه او ټوخی لرم. طاقت د جواب مي نه درلود، مگر د رب په نامه همت مي وکئ، کښېناستم، دا يو څو کرښي نوشته کوم.

هغه وخت چي تاسي په بمبئ کي واست. ما څو خطونه در لېږلي وو، نه يم خبر چي ولي نه دي در رسېدلي؟ يو خط مي ډهلي ته هم لېږلی وو، مگر له يوې خوا ځخه جواب رانغئ. په اخر کي ستاسي د قندهار د تگ خط را ورسېدئ. نو ما انتظار کاوه چي تاسي به له قندهاره کله را واپس سئ، دا دئ چي تاسي

الحمدلله په عافیت راغلاست، مگر د قندهار کیفیت مو هیڅ نکئ نوشته. ما اروېدلي دي چي په قندهار کي سخت مرض وو، ډېر خلق مړه سوه. ښه ـ ښه ملایان هم ولاړل. که په حاجي حبیب الله [1] او حاجي عبدالرحیم [2] او حاجي نظر جان [3] حال لرې، نو به مي خبر کې. ولي چي زه د قندهار څخه تفصیلي خبر نلرم. دا به نوشته کې چي څه مرض وو او څوک شناخته کسان مړه سوه او اوس څه حال دئ؟ د موسم د کښت او غلې او مېوې څه حال دئ؟ ارزاني ده، که گراني؟ آیا شراف الدین اخوندزاده [4] ژوندی دئ؟ ملا عبدالغفور خروتی [5] چي و مدینه منوره ته ئې هجرت کړی وو، اوس چیري دئ؟ زموږ له دکنه سید ابراهیم جان آغا تللای وو، د تور صاحبزاده په کوڅه کي ئې کور دئ. که ئې پېژنې نو حال به ئې را ته نوشته کې.

د افغانستان او پاکستان په مابین کي څه حال دئ؟ مشرقي پښتانه په حقیقت کي د پاکستان مخالف دي؟ یا دا پروپاگند دئ؟ ما دا تېر کال ټوله دا کوښښ وکئ، چي مصر ته روپۍ ورسي او تاسي مي هم واسطه کړئ. سره ستاسي د وعدو تاسي هم هیره کړه او شپې دغسي تیري سوې. سږ کال به ان شاءالله تعالی مصارف د کتاب د چاپ ورسي ان شاالله او عجبه نه ده، چي د کتاب په چاپېدو شروع هم وسي. لیکن زه اوس په سبب د مرض له کاره لویدلی یم. گوره چي عاقبت څه سي؟ تاسي به په بمبئ کي تر څو یاست؟ او بیا به قندهار ته کله ځئ؟ تفصیل به راته نوشته کې.

دا به نوشته کې چي تاسي د دریاب پر لار راغلاست، یا د ډهلي پر لار؟ د دریاب څه حال دئ؟ طغیان لري، ساکن دئ؟ [6]

والسلام

ابوالوفاء

---

[1] حاجي حبیب الله پوپلزی د کندهار مشهور سوداگر وو او په چارسو کي ئې یو تجارتي سرای (مارکېټ) ودان کړی وو. اوس هم دغه سرای سته. د حاجي حبیب الله د سرای په نامه مشهور دئ. حاجي حبیب الله دیني زده کړي کړي وې او په سیاست کي ئې هم دلچسپي درلوده.

[2] حاجي عبدالرحیم د ښار لوی تاجر وو. په حاجي عبدالرحیم بالاکرزي سره هم مشهوره وو. یو تجارتي سرای (د حاجي عبدالرحیم سرای) ئې په چارسو کي اوس هم د دوی په نامه مشهوره دئ.

[3] حاجي نظر جان اڅکزی هم د کندهار مشهور تاجر او زمیندار وو. په هرات بازار کي دوه سرایه د دوی په نامه دي. باغ پُل ته نژدې ئې یو باغ هم ودان کړی وو. د (حاجي نظر جان باغ) چي د دوی نامه ته منسوب وو.

[4] شراف الدین اخندزاده د کندهار ښار له لویو علماوو څخه وو. د کندهار ښار د هرات بازار په جنوبي کلاقصیل کي ئې کور او مسجد وو. مسجد ئې اوس هم د شراف الدین اخندزاده د مسجد په نامه مشهور دئ.

[5] شیخ عبدالغفور خروتی(۱۲۸۴–۱۳۵۲ل.) د استاد احمد صمیم او حاجي عبدالظاهر جان څرک پلار دئ. استاد محمد معصوم هوتک د شیخ صاحب ژوند او علمي شخصیت په اړه د (ادیب شیخ) په نامه یوه مستقله رساله لیکلې ده.

[6] دا لیک مولانا صاحب د (۱۳۲۶ او ۱۳۳۵ل.) کلونو تر منځ رشاد صاحب ته لېږلی دئ. په دغو کلونو کي رشاد صاحب په ډهلي او بمبئ کي د Afghan Fruit General Agency او د پښتون کمپنی نماینده وو.

# د فاضل استاد بېنوا لیک لوی استاد پوهاند حبیبي ته

د ۱۳۵۹ کال، دلو ۱۴

محترم لوی استاد حبیبي صاحب!

زما د دردمند زړه سلام او احترام ومنئ. خط دي راورسېد. په لیدو یې سترګي روښانه او په لوستو یې زړه خوشاله سو. شکر دئ چي جوړ یې. زه هم نیمګړی جوړ یم. خو د دې خاى د سړو له لاسه مي زړه په سینه کي کله ـ کله لغتي وهي. دا خکه چي سږ کال زما د زړه له طالع څخه لیبیا د سړو بادو له سختو طوفانو سره مخامخ ده. حتی تر ډېرو کلو وروسته د دې ځاى په ځینو سیمو کي واوره هم اورېدلې ده. یخ مي پر زړه ډېر بد تاثیر کوي، خبر نه یم چي په کابل کي واى د هغه ځاى د سړو سره به مي څه حال واى؟ یقیناً به مي حال بد واى.

په هر حال زما او ستاسي او فرهنګ او هاتف نومونه مي په اخبار کي ولوستل. خو زما د ورور نوم نې عبدالحکیم حقاني لیکلی وو، زما خیال دا سو چي ګوندي کوم بل حقاني پیدا سوی دئ، مګر بیا یې هم د خلګو کور ودان چي د ګور پر غاړه زموږ زاړه هدونه هم نه هېروي او وایي:

که د زلمو نه پوره نه شوه
پښتونستانه بوډاګان به دي ساتینه

د مرحوم لعل محمد کاکړ په مړینه د زړه خپه سوم، خداى دې وبخښي او یقیناً د ده ځاى د ملګرو په ټولنه کي تش پاته سو. خو چاره څه؟ موږ هم ورپسي روان یو. یوه پرزه مي لیکلې ده. لطفاً به یې د خواخوږي صاحب او یا بل ملګري په لاس د مرحوم کورنۍ ته ورولېږئ. تاسي لیکلي وه، چي د دلو پر نهمه به د میا فقیرالله جلال آبادي دپاره یو بین المللي سیمینار جوړ کي، خو ما ته د سنایي غزنوي د۱۳۵٦کال د مېزان د ۲۵مي نېټې سیمینار رایاد سو، چي ما هغه وخت څو بیته لیکلي وو، چي دا دئ اوس یې تاسي ته هم لیکم، د بیتو عنوان مي بدلون وو:

ژوندي وژني مړي ستايي
دا د دې عصر بدلون دئ

نن سبا یې تر پښو لاندي
په ستاینه د پرون دئ

پتنګــانو خــوی څــه نــور ســو
د مــړو شــمعو ســـر تـــه ژاړي

ژونـدي شـمعي پـه اور سـوځي
لــه مــړو شــمعو مــراد غــواړي

د ژونــد لار مـــو ورکـــه کـــړې
نـه يـې مـو مـو پـه ژونـدو کـې

د ګــور مــړو تــه مــو مــخ ســو
لټـــوو يـــې هـــديرو کــــې

برابې مې د مسکو له راډيو څخه واورېدل چې د ميا فقيرالله سيمينار په کابل کې پای ته ورسېد او کمبله يې ټوله سوه.

نور نو دلته کراره کراري ده. کور نه لرم. د سفارت د دفتر په دوو کوټو کې د کوچنيانو سره اوسم، زما د دفتر او زما د خوب د کوټې تر منځ يوه پله دروازه ده، سهار چې دفتر ته ننوزم له يوې خوا د سکرتيري د ټايپ د ماشين ټک ـ ټک وي او له بلې خوا د اشپزخانې د بخار د دېګ پښهار او زه يې په منځ کې ناست په لڅه کوټه کې سفارت کوم. هغه هم کله چې باد او باران سره ګډ سي نو د فوق العاده نماينده او لوی سفير د دفتر په اتاق کې تر بجلکي پوري او به ډم ودرېږي. تليفون کار نه کوي، موټر له کاره لوېدلی او نور ... دا مې حال او دا مې احوال دئ. ښه سو چې د سفارت خوند مې هم وليد، لا ګوره چې خدای نور څه راباندي ويني؟

هر څو چې د دې ځای خارجه وزارت ته د کور په باب لکم او وايم ټولي ليکنې او ويناوي د (ان شاء الله) په لمن پوري غوټه کوي او (بُکره ـ بُکره) راته وايي.

خبر نه يم چې د لوی خدای رضا به کله وي او دا (بُکره) به کله (اليوم) سي؟

دا ستاسې وزارت تـه خـو هـدايت ورکـړه چـې د افغانستان د معرفي. خيني رنګه پامپليټونه په انګريزي او فرانسوي او که امکان ولري په غربي ژبه د ځينو رنګه منظرو سره د خارجه وزارت په واسطه راوليږي، زه به رسمي مکتوب هم خارجه وزارت ته وليکم.

نور دي نو وخت نه نيسم، ټولو ملګرو ته سلام او احترام.

ستاسي بېنوا

---

[1] پورته ليک د پوهنيار مطيع الله روهيال په زيار او زحمت چمتو سوی او د دوی په فېسبوک پاڼه کې خپور سوی. کندهار مجلې اداره ئې د خونديتوب او ګټورتوب په موخه تاسو د زنولوستونکو ته کټ مټ خپروي.

عبدالظاهر څرک

# د جلال آباد د سفر یوه خاطره

د (۱۳۵۶ هـ ش) کال ژمی وو، زه په کابل کې او سېدلم. دا هغه وخت وو، چې د افغانستان خلګو د جنګ ناوړه څېره نه وه لیدلې او د سولې په فضاء کې په خواږه خوب بیده وه.

د کابل خلګ اکثره د جمعې په شپه جلال آباد ته ځي، خپله مېله کوي او د شنبې د ورځې په سهار بیر ته خپلو کارو ته راځي.

جلال آباد په ژمي ډېره معتدله هوا لري او د کابل هوا ډېره سړه وي. د کابل سرمایدار خلګ او د حکومت عالي رتبه مامورین اکثره هورې خپل کورونه لري او د استراحت شپې دلته تېروي.

مرحوم سید عبدالهادي آغا دي خدای وبخښي د کندهار د مشهورو صرافانو څخه وو او د کابل په شهزاده سرای کې ئې دوکان وو. کور ئې د کابل په څلرمه کارته کې وو. نوموړی زما د مرحوم پلار د اشنایانو څخه وو، نو پرمائې ډېر ټینګار کاوه چې زه باید د ده په کور کې واوسېږم، که څه هم ما د خپل او سېدلو اطاق د کابل په منډۍ کې درلود.

نوموړی ډېر مهمان نوازه او خاکساره سړی وو، د کندهار اکثره معتبر او معززین هم په دې کور کې اوسېدل، د ده کور داسي ځای موقیعت درلود، چې د وخت د بعضي سیاسي خلګو کورونه هم دلته نږدې وه او ما به کله ـ کله لیدل.

د عمرجان صاحب زاده جامع چې مرحوم حاجي عبدالحق کندهاري جوړه کړې وه هم نږدې وه. حاجي عبدالحق کندهاری هم د دې وخت یو مشهور او مېلمه پالونکی تاجر وو، چې د ډېرو کندهاریانو لاس په خلاص وو او په حکومت کې ئې ډېر شناخت درلودئ، موږ به د جمعې لمونځ اکثره وخت په دغه جامع کې کاوه.

جامع ته نږدې یو کوچنی سوف وو، د سوف په پای کې د ببرک کارمل کور وو او د عبدالهادي آغا د کور څنګ ته د داؤد خان د ټینګ ملګري او د حکومت د وزیر ډاکتر عبدالمجید کور وو.

د دې کور دشمال خواته څو سړکه هاخوا د نورمحمد تره کي کور وو.

د ډاکتر عبدالا له د ولسمشر داؤد خان مرستیال کور هم په دې څلرمه کارته کې وو. مرحوم عبدلهادي آغا یو سپین ږیری او مهربانه مشر وو، زوی ئې نه دلود او یوه لور ئې وه.

دلته به هره شپه بنه ـ بنه مجلسونه او دورقو باندارونه هم وه، کله ـ کله به سطرنج هم وو، خپل

آشپز ئې درلود، چې هره شپه به ئې ښه ـ ښه خوراکونه تیارول.

عبدالهادي آغا یو مشهوره صراف وو، نو د ده معامله داران اکثره د جلال آباد خلک وه او دی به ئې دانډیوالانو سره مېلمه کاوه، د جمعې په شپه ماپښین مخ د جلال آباد پر خوا رهي سوو. دا هغه وخت وو چې د افغانستان ټوله خلک په خپلو کورونو او ښارونو کي استوګن وه او کم مهاجر د نړۍ په ملکونو کي موږ نه درلود. د کابل خلک د مېلو او تفریح ډېر شوقیان وه.

ټوله لار د کابل خلک په خپلو کوچنیو موټرانو کي د خپلو کورنیو سره مخ د جلال آباد پر خوا روان وه، د زیاتو موټرانو څخه د احمد ظاهر ښایسته ږغ اورېدل کېدئ. احمد ظاهر په دې وخت کي د شهرت لوړ اوج ته رسېدلی وو او ډېرو خلکو د ده د آواز استقبال کاوه، دی د افغانستان د پخواني صدراعظم ډاکتر عبدالظاهر زوی وو.

د جلال آباد ښار ته په خیر ورسېدو، د شپې تېرېدو لو میلمستیا ورسته غرمه په یو بل کور کي میلمانه وو. دا کور به غلام حیدر خان نومېدئ، تاجر نه وو، د افغانستان د اردو متقاعد صاحب منصب وو، مېلمه پال سړی وو، ځکه او باغونه ئې درلودل او زیات حصول ئې په مېلمنو خرڅول. د ده کور د ننګرهار د ادبیانو او شاعرانو مرکز هم وو، د افغانستان پخواني پاچا محمد ظاهر شاه هم دې کور ته راغلی وو.

د افغانستان مشهور لیکوال او ستر شاعر مرحوم صدیق الله رښتین مي په دې کور کي ولید او روغبړ مو ورسره وکړ. د هغه وخت یو بل مشهور سړی، چې پر ستر خان زما څنګ ته ناست وو، مرحوم عبدالغفور ویاند وو، دی د راډیو افغانستان د پښتو د مشهورو نطاقانو څخه وو، د ویاند تخلص مرحوم محمدګل خان مومند د ده د پاره غوره کړی وو، نوموړی یو وخت د کندهار د پوهني مدیر هم وو. ډېر خوږ مجلس ئې وو، د خبرو په ترځ کي ئې دا مبارکي هم راته وویل چې پرون مي داتو بجو په خبري سرویس کي دا خبر ووایه چې د کجکي د بند بر برېښنا فعاله او کندهار ښار په روښانه سو.

تر ډوډۍ او لمونځ کولو ورسته مخ د کابل پر خوا رارهي سوو. د کابل او جلال آباد پر لار د کوچنیو موټرانو او مېله والو ګڼه ګونه زیاته وه لار ئې ډېره خوا پاکې او ښایسته وه.

په لار کي مو داوبو پرغاړه یو سړی، چې کاغذ باد ئې په هوا کړی وو او مېرمني ئې څرخه ورته نیولی وه ولیدئ چې ښه ورته را نژدې سولو دا سړی مرحوم احمد ظاهر وو. او موږ کابل ته په خیر را ورسیدو.

# د اطلاعات او فرهنګ ریاست د فعالیتو دري میاشتنی راپور

یادونه: اطلاعات او فرهنګ ریاست غواړي چې د کندهار مجلې په هره ګڼه کې د خپلو ۲ دوو میاشتو فعالیتو او لاسته راوړنو راپور خپلو لوستونکو ته وړاندې کړي (البته دا د تېرو ۳ میاشتو د فعالیت راپور دئ) د ریاست د راپور موخه دا ده، چې له یوې خوا د کندهار خلکو ته د خپلې کارکردګۍ حساب ورکول سي او له بلې خوا د خپلو فرهنګي او علمي شخصیتونو توجه جلب او مشورې واخیستل سي.

۱ – تقریباً ۳ درې میاشتې مخکې چې د اطلاعات او فرهنګ ریاست مسئولیت فضل الباري بریالي ته وسپارل سو، نو د محلي رسنیو د څار او اصلاح لپاره ئې د خبریالانو جرګګۍ جوړه کړه، چې له مخې ئې د هرې رسنۍ نشراتي پالیسي. خپرېدونکي مواد، له کارکوونکو سره قراردادونه، جواز او نور مسایل ګوري او د اصلاح لپاره ئې لازم تدابیر نیسي.

۲ –تر ډېرو هلوځلو وروسته د میرویس خان نیکه مقبرې پروژه منظور سوه، تدارکاتي چارې ئې مخته یووړل سوې او بالاخره ئې د ترمیم چارې پیل سوې، چې په نژدې راتلونکي کې به ئې رسماً افتتاح وسي. (دا یوه کلنه پروژه ده چې څه باندې ۷ اوه میلیونه افغانۍ لګښت پر راخي.)

۳–د کندهار آزادي مطبعه چې له تقریباً ۴ څلورو کالو راهیسې فلج وه، بیا فعاله سوه او د طلوع افغان ورځپاڼې تر څنګ کندهار مجله، چې مخکې په کابل کې چاپېده اوس په کندهار کې چاپیږي. له ښه مرغه د مطبعې د فعاله کېدو په پیل کې ۴ څلور لکه افغانۍ مرسته هم ورته راجلب سوه.

۴ –اطلاعات او فرهنګ ریاست له وزارت مقام څخه د کندهار میوزیم د تاریخي اثارو د پېژندني او ثبت لپاره د ۳ درې کسیز پلاوي د راتګ غوښتنه وکړه، چې له نېکه مرغه ۳ درې کسیز مسلکي پلاوی راغی او ۴۰ څلوېښت ورځې ئې د ۷۹۱ تاریخي اثارو پېژندنه وکړه، قدامت ئې معلوم کړ او په ډېر اساسي ډول ئې ثبت کړل. همدارنګه د میوزیم لپاره څو الماري. جوړې او ځینې ترمیم او بعضې نور لازم کارونه پکښې وسول. په میوزیم کې دارنګه تر ۱۰۰۰ زیاتې تاریخي سکې موجودې دي چې په آینده کې به له وزارت مقام څخه یو بل پلاوی راسي او تر صفایي وروسته به یې د قدامت پېژندنه وسي.

۵ – د کندهار د سیاحتي شرکتونو اتحادیه، چې مخکې پر نېست حساب وه. بیا راژوندۍ سوه، د شرکتونو مسئولین راټول کړل سول او په ریاست کې د اتحادیې د رهبرۍ لپاره ټاکنې وسوې او منظمه اتحادیه ورته جوړه سوه.

۶ – د لوی کندهار ادبي بهیر اوونیزې مشاعرې راژوندۍ کړل سوې، چې هره اوونۍ زیات شمېر شاعران او ادیبان ګډون پکښې کوي او له ملي راډیو–تلویزیون او ځانګي راډیو څخه خپرېږي.

۷–اطلاعات او فرهنګ ریاست د (ویښتیا) په نوم د لکچرونو او بحثونو لړۍ راپیل کړه، چې په هرو ۱۵ پنځلسو ورځو کې پر یوه خاصه موضوع لکچر وړاندې کیږي او ګډونوال پر هماغه موضوع خپل نظریات سره شریکوي.

۸ ـ اطلاعات او فرهنګ وزارت د ریاست په غوښتنه یو ۳ درې کسیز انجنیري پلاوی راولېږی، چې د نارنج مانۍ د احاطوي دېوال، مینا او سلیمان برجونو، زرغونې انا او احمد شاه بابا د کور د استملاک او ترمیم براورد ئې وکړ او ان شاء الله راتلونکی کال به له دغو تاریخي آبدو څخه د خینو چاري پیل سي.

۹ ـ ریاست د خپلو فرهنګي هڅو په لړ کي د ښاغلي نذیر احمد تائي (د حوشحال خان خټک نوې پخوانۍ طبنامه) او د آغلي نسیمي باري (د بلا سپوری) کتابونو د پېژندني غونډې جوړې کړې.

۱۰ ـ د اطلاعات او فرهنګ وزارت په همکارۍ د فرهنګي میراثونو د خوندیتوب په اړه د عامه پوهاوي ۲۱ یویشت ورځنی ورکشاپ جوړ سو، چې د ښوونځیو د معلمینو تر څنګ د ریاست کارکوونکو هم برخه پکښې اخیستې وه.

۱۱ ـ اطلاعات او فرهنګ ریاست د ۳ درې میاشتو په ترځ کي د شهید عبدالقدیم پتیال یادغونډه، د ځوانانو د فردي او ټولنیزو مسئولیتونو په اړه غونډه، د اتباعو د حقوقو او وجایبو په باب غونډه، د رضاکارانو د نړۍ والي ورځي لمانځنه، د ولایت مقام په سپارښتنه د دولت په ملاتړ غونډه، د خبریالانو د مصئونیت ۲ دوې غونډې، د (اسلا) په همکارۍ په اجتماعي توګه د ټولنیز خدمت په اړه ۲ ورځنی ورکشاپ او په حکومتولۍ کي د ښځو د ونډې په اړه غونډه، د کندهار د آزادو خبریالانو له مرکز سره په ګډه د رسنیو په وړاندي د جرمونو د معافیت ختمېدو د نړۍ والي ورځي لمانځنه، د افغان پوهیالو له بنسټ سره په ګډه (د فساد اغېز پر ټولنه) په اړه غونډه، په کندهار کي له موجوده مطبعو سره ۲ دوې غونډې، له ممثلینو سره ناسته، په ولایت مقام کي د شهید عبدالعلي شمسي یادغونډه او د مشرانو جرګې له غړو سره غ ـ نډه جوړه کړې ده.

۱۲ ـ ولایت مقام له اطلاعات او فرهنګ ریاست سره د ۸ اته ډیسکټاپ کمپیوټرونو، رنګه پرینټر، ټلویزیون، خطابیې مېز او څو نورو وسایلو مرسته وکړه چې ریاست ئې کورودانی وایي.

۱۳ ـ په دې موده کي د ریاست برېښنا سیستم فعال کړل سو، یوه کېمره، دوه بږغیز ریکارډرونه، یو جنرېټر او ګڼ شمېر لوازم رانیول سول او د ریاست څه اندازه قرض هم ادا کړل سو.

۱۴ ـ دا رنګه د اطلاعات او فرهنګ ریاست په مشرۍ د رسنیزو تخطیو د مخنیوي کمېسیون جوړ سو، چې د رسنیزو تخطیو مخنیوی به د دې کمېسیون له لاري کېږي.

۱۵ ـ اطلاعات او فرهنګ ریاست د مرحوم محمد ولي زلمي او مرحوم څېړنوال عبدالهادي هاند قبرونه جوړ کړل.

۱۶ ـ اطلاعات او فرهنګ ریاست د کال د غوره هنرمندانو د ستاینې او له فرهنګي شخصیتونو څخه د مننې لپاره غونډه جوړه کړه، چې ۳ درې هنرمندانو ته ایوارډونه، ۱۰ لس نورو ته ستاینلیکونه او ۵ پنځه فرهنګیانو ته ۱۸۵۰۰۰ زره افغانۍ نقدي مرسته ورکول سوه.

۱۷ ـ اطلاعات او فرهنګ او معارف ریاستونو په ګډه د ښوونځیو تر منځ د فوټسال ۶ شپږ ورځنۍ سیالۍ پیل کړې، چې د کندهار د ډېرو ښوونځیو لوبډلو ګډون پکښې کړی وو.

۱۸ ـ په دې موده کي د چمن له یوه کتابتون، د غزني د جنډې بازار له عامه کتابتون، صفیه عمه جانې لېسې له کتابتون او یو شخصي کتابتون سره د ۱۵۶ هغو کتابونو، چې اطلاعات او فرهنګ ریاست چاپ کړي دي، مرسته سوې ده.

۱۹ ـ د اطلاعات او فرهنګ ریاست عواید، چې مخکي نقدي اخیستل کېدل، اوس بانکي سیستم ته اوښتي او د دولت عمومي اکاونټ ته انتقالېږي، چې د هیڅ ډول حیف و میل امکان یې نه سته.

دا ډول په تېرو ۳ درو میاشتو کي له بېلابېلو فرهنګي او علمي مشرانو سره لیدنه سوې او د ریاست د بهبود لپاره مشورې څني اخیستل سوي دي.

## د بایزید روښان د خیر البیان د بشپړ متن د چاپ په اړه

خیر البیان د بایزید روښان(۹۲۶-۹۸۵هـ.ق.) تر ټولو مهم اثر دئ. دا کتاب بایزید روښان په څلورو ژبو(عربي، پښتو، پارسي او هندي) لیکلی دئ او د خپلې عقیدتي او عرفاني لارې ټول کوائف او اصول ئې په څلوپښتو بیانو کې بیان کړي دي.

د خیر البیان خطي نسخه په (۱۹۵۹م.) کال کې د پېښور د پښتو اکاډیمۍ مشر ـ مولانا عبدالقادر (۱۹۰۵-۱۹۶۹م.) د جرمني د تیوبینګن ښار په کتابخانه کې وموندله او په (۱۹٦۷م.)کال کې لومړی ځل د خیر الیبان متن د دغې یوې او واحدې نسخې له مخې د حافظ عبدالقدوس قاسمي له یوې مفصلې سریزې سره د پېښور د پښتو اکاډیمۍ له خوا چاپ سو.

خیر البیان دوهم ځل د جرمني له دغې نسخې څخه په (۱۳۵۳ل. = ۱۹۷۴م.) کال کې د بایزید روښان د بین المللي سیمینار په ویاړ د کابل پوهنتون د ژبو او ادبیاتو پوهنځي له خوا د لوی استاد علامه حبیبي، فاضل استاد بېنوا او علامه پوهاند رشاد د مفصلو سریزو او د پوهاند رشاد له یوې مغتنمې لغتنامې سره په عکسي ډول چاپ سو.

د خیر البیان دغه واحده معلومه نسخه (د جرمني نسخه) نیمګړې وه او یوازې د سریزې برخه ئې په څلورو ژبو وه، د متن برخه ئې یوازې په پښتو ژبه وه. خو له نیمکر غه په شپېتمو کلونو کې چې کله سر محقق زلمي هیوادمل د هند د کتابخانو د خطي نسخو فهرست جوړاوه، د هند د حیدر آباد-دکن د سالارجنګ موزیم د خطي نسخو په کلیکسیون کې ئې د خیر البیان یوه بله نسخه وموندله او په (۱۳٦۳ل.) کال کې ئې په خپل کتاب (د هند د کتابخانو پښتو خطي نسخې) کې دغه نسخه معرفي کړه.

د خیر البیان دغه نسخه (د سالارجنګ موزیم نسخه) بشپړه نسخه ده، چې د متن برخه ئې هم په څلورو سرو ژبو ده. د هند د دغې نسخې له پیدا کېدو سره د خیر البیان د یو بل بشپړ متن چاپ ضرورت حس سو او په متنپوهنه کې چې د یوه زاړه متن نورې او بشپړې نسخې وموندلې سي، نو زاړه چاپونه ئې باید ورسره مقابله سي، یو نوی او له تېروتنو څخه پاک متن ئې باید تهیه او چاپ سي. خو په افغانستان کې د داخلي جنګونو او اړودوړ په سبب دغه کار کلوته وځنډېد او چاونه وکړ.

له نیکمر غه اوس زموږ محقق لیکوال استاد محمد معصوم هوتک د هند د سالارجنګ موزیم دغه نسخه د څو میاشتو راهیسې ـ تر کار لاندې نیولې ده او په پام کې لري چې لومړی دغه نسخه په خپله اصلي بڼه له لازمو توضیحاتو او تحشیو سره خپره کړي او پر څنګ ئې د پښتو برخه د دوو خطي او دوو چاپي نسخو له مخې په انتقادي توګه تهیه او چاپ کاندي. موږ ښاغلي هوتک ته د روغتیا او سلامتیا دوعا کوو او د دغه ادبي او تاریخي متن د ډېر ژر چاپ لار په زیاتي تلوَسې سره څارو.

# Kandahar

Bi-Monthly Magazine of Kandahar Information and Culture Department



مولانا ابوالوفاء افغاني